






**د پوهنې وزارت**

د تعليمي نصاب د پراختيا، د ښوونکو د روزنې او د ساينس د مرکز معينيت
د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي کتابونو د تاليف لوی رياست


# پښتو

## دولسم ټولگی

## (دويمه ژبه)




د چاپ کال: ۱۳۹۰ هـ . ش.


پښتو ـ دولسم ټولگی (دويمه ژبه)








**د پوهنې وزارت**

د تعلیمي نصاب د پراختیا، د ښوونکو
د روزنې او د ساینس د مرکز معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي
کتابونو د تألیف لوی ریاست

# پښــتو

## دولسم ټولګی

## دویمه ژبه

۱۳۹۰ هـ. ش. کال



**ليکوالان:**

ـ څېړنپوه نعمت الله اندړ

ـ څېړنوال سيد محی الدين هاشمي

**علمي او مسلکي ايډيټ:**

ـ پوهنمل بريالی باجوړی

**ديني، سياسي او کلتوري کمېټه:**

ـ حبيب الله راحل د تعليمي نصاب د پراختيا په رياست کې د پوهنې وزارت سلاکار.

ـ مولوي خليل الله فيروزي

**د څارنې کمېټه:**

ـ دکتور اسدالله محقق د تعليمي نصاب د پراختيا، د ښوونکو د روزنې او د ساينس مرکز معين.

ـ دکتور شېرعلي ظريفي د تعليمي نصاب د پراختيا د پروژې مسؤول.

ـ د سرمؤلف مرستيال عبدالظاهر گلستاني د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي کتابونو د تاليف لوی رئيس. (د ادبياتو ماستر)

**ډيزاين:**

ـ صفت الله مومند

**کمپوز:**

ـ صدرالدين ابراهيم خېل



## ملي سرود

دا وطن افغانستان دی     دا عزت د هر افغان دی
کور د سولې کور د تورې     هر بچی يې قهرمان دی
دا وطن د ټولو کور دی     د بلوڅو د ازبکو
د پښتون او هزاره وو     د ترکمنو د تاجکو
ورسره عرب، گوجر دي     پاميريان، نورستانيان
براهوي دي، قزلباش دي     هم ايماق، هم پشه يان
دا هېواد به تل ځلېږي     لکه لمر پر شنه اسمان
په سينه کې د اسيا به     لکه زړه وي جاويدان
نوم د حق مو دی رهبر     وايو الله اکبر وايو الله اکبر



بسم الله الرحمن الرحیم

## د پوهنې د وزیر پیغام

### ګرانو ښوونکو او زده کوونکو،

ښوونه او روزنه د هر هېواد د پراختیا او پرمختګ بنسټ جوړوي. تعلیمي نصاب د ښوونې او روزنې مهم توکی دی چې د معاصر علمي پرمختګ او ټولنې د اړتیاوو له مخې رامنځته کېږي. څرګنده ده چې علمي پرمختګ او ټولنیزې اړتیاوې تل د بدلون په حال کې وي. له دې امله لازمه ده چې تعلیمي نصاب هم علمي او رغنده انکشاف ومومي. البته نه ښایي چې تعلیمي نصاب د سیاسي بدلونونو او د اشخاصو د نظریو او هیلو تابع شي.

دا کتاب چې نن ستاسو په لاس کې دی، پر همدې ارزښتونو چمتو او ترتیب شوی دی. علمي ګټورې موضوعګانې پکې زیاتې شوې دي. د زده کړې په بهیر کې د زده کوونکو فعال ساتل د تدریسي پلان برخه ګرځېدلې ده.

هیله من یم دا کتاب له لارښوونو او تعلیمي پلان سره سم د فعالې زده کړې د میتودونو د کارولو له لارې تدریس شي او د زده کوونکو میندې او پلرونه هم د خپلو لوڼو او زامنو په باکیفیته ښوونه او روزنه کې پرله پسې ګډه مرسته وکړي چې د پوهنې د نظام هیلې ترسره شي او زده کوونکو او هېواد ته ښې بریاوې ور په برخه کړي.

پر دې ټکي پوره باور لرم چې زموږ ګران ښوونکي د تعلیمي نصاب په رغنده پلي کولو کې خپل مسؤولیت په ریښتوني توګه سرته رسوي.

د پوهنې وزارت تل زیار کاږي چې د پوهنې تعلیمي نصاب د اسلام د سپېڅلي دین له بنسټونو، د وطن دوستۍ د پاک حس په ساتلو او علمي معیارونو سره سم د ټولنې د څرګندو اړتیاوو له مخې پراختیا ومومي.

په دې ډګر کې د هېواد له ټولو علمي شخصیتونو، د ښوونې او روزنې له پوهانو او د زده کوونکو له میندو او پلرونو څخه هیله لرم چې د خپلو نظریو او رغنده وړاندیزونو له لارې زموږ له مؤلفانو سره د درسي کتابونو په لا ښه تالیف کې مرسته وکړي.

له ټولو هغو پوهانو څخه چې د دې کتاب په چمتو کولو او ترتیب کې یې مرسته کړې، له ملي او نړیوالو درنو مؤسسو او نورو دوستو هېوادونو څخه چې د نوي تعلیمي نصاب په چمتو کولو او تدوین او د درسي کتابونو په چاپ او وېش کې یې مرسته کړې ده، مننه او درناوی کوم.

ومن الله التوفیق

فاروق وردګ

د افغانستان د اسلامي جمهوریت د پوهنې وزیر

# لیک لړ

# حمد



ـ تاسې د حمد د کلمې په معنا او مفهوم پوهېږئ چې څه ته وايي؟
ـ په تېرو ټولګيو کې مو د پښتو ژبې د لوست په کتابونو کې د حمد په نامه څه لوستي؟
ـ د حمد اصلي موخه او هدف څه دی؟

د حمد لغوي معنا ثنا، صفت او ستاینه ده. په اصطلاح کې هغه منظومه یا منثوره وینا یا شعر دی، چې د الله ﷻ ثنا، صفت او ستاینه پکې راغلې وي.

موږ د پښتو ژبې د پخوانیو او معاصرو (اوسنیو) شاعرانو د شعرونو په مردفو دیوانونو او شعري ټولګو کې داسې شعرونه مومو، چې د الله ﷻ ستاینې، ثنا او صفت ته ځانګړې شوي دي. په دغه ډول شعرونو کې هر شاعر له خپل فطري استعداد او ذوق سره سم د شعر په خوږه او رنګینه ژبه د خدای ﷻ د عظمت او صفتونو بیان کوي. موږ د دې ټولګي د لوست پیل ((د عبدالقادر خان خټک)) په حمدیه شعر کوو:



که پر تن د هر وېښته ژبې هزار کا
بیا دا ژبې یې هزار گفتار کا

که سیندونه د جهان واړه سیاهي شي
قلمونه د جهان واړه اشجار کا

پرېښتې، سړي، پیریان سره راټول شي
په بیان په کښو هزار ځله تکرار کا

د خپل خدای د نعمتونو په حساب شي
گومان مه کړه چې یې یو نعمت په شمار کا

حکیمان که واړه جمع دعالم شي
په هوا به یو ورق کله قرار کا

چې بې ستنو یې آسمان دی درولی
حیرانېږي چې نظر ورته هوښیار کا

باد او خاوره، اور، اوبه که هر څو ضد دي
په یوه مکان کې جمع دا څلور کا

حرکات د هېڅ اشیا نه شي بې حکمه
سکنات کله پخپله په اختیار کا

ښایسته کاندي آسمان په شپه په ستوریو
په ورځ ځمکه ښایسته په لاله زار کا

له يوه باغه مېوې له يوې ځمکې
تفاوت يې د لذت ترمنځ بسيار کا

د مېږي د پښو آواز اوري بې غوږو
چې په توره شپه په تور کاڼي ګوزار کا

نږدې لېرې يې ليدو ته برابر دي
د نظر حجاب يې غر نه يې ديوار کا

دا دنيا لکه مزرع د آخرت ده
پکې کر ځيني د ګلو څوک د خار کا

که ګنج غواړې رنځ کوه عبدالقادره!
مزدوري به يې هم ومومې چې کار کا
(عبدالقادر خان خټک)

عبدالقادر خان خټک:
د پښتو ژبې نوميالی او خوږ ژبې شاعر، د خوشحال خان خټک زوی و. په ۱۰۶۳هـ.ق. د پښتونخوا پېښور په اکوړه خټک کې زېږېدلی او تر ۱۱۲۵هجري قمري کال پورې يې ژوند يقيني دی. د لوړې پوهې او ادبي استعداد خاوند و. په نظم او نثر کې يې ډېر آثار ليکلي او ژباړلي دي. ځيني آثار يې چې موږ په واک کې لرو دا دي:
د اشعارو ديوان (حديقه خټک)، ګلدسته، يوسف زليخا، نصيحت نامه، څلوېښت حديثونه، قصيده برده.

د متن لنډيز:

الله ﷻ پر انسانانو ډېر نعمتونه لورولي دي. دا نعمتونه دومره ډېر او له شمېره تېر دي، چې که انسانان او پېريان سره راټول شي، د نړۍ سيندونه يې سياهي او د ونو ټوټې يې ټول قلمونه شي، بيا هم پرې دا نعمتونه ټول نه ليکل کېدای شي او نه شمېرل کېږي.

الله ﷻ آسمان بې ستنو درولی دی. د شپې يې پر ستورو او د ورځې يې پر لمر ښکلی او روښانه کړی. هېڅ شی بې د خدای ﷻ له حکم څخه حرکت او سکون نشي کولای.

د نړۍ پر مخ چې هر څه ته ګوري د خدای ﷻ د حکمت څرګنده نښه ده. انسان ته پکار دي چې دې هر څه ته په غور او دقت وګوري او پر خپل خدای ﷻ کلک باور او ايمان ولري، د زړه له کومې د هغه اطاعت او عبادت وکړي. دا نړۍ د هغې نړۍ (آخرت) لپاره ديوې کروندې حيثيت لري. دلته دې نېکې چارې ترسره کړي چې هورې په آخرت کې يې اجر او ثواب ومومي.

## فعاليتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په چوپه خوله ولولي، وروسته دې زده کوونکي په وار سره د شعر يو يو بيت د ټولګي په وړاندې ولولي. ښوونکی دې د لوستلو پر مهال د هغوی د غلطيو په سمولو کې مرسته وکړي.

۲ـ زده کوونکي دې پر دوو ډلو ښېل کړای شي. يوه ډله دې په متن کې د جمع نومونه او بله ډله دې مفرد نومونه لست کړي، بيا دې د هرې ډلې استازې هغه د ټولګي په وړاندې په لوړ غږ ولولي. ښوونکی دې د اړتيا په وخت کې مرسته وکړي.

**جمع نوم**: هغه نوم دی چې له یوه څخه ډېر څیزونه یا شیان نوموي، لکه: غرونه، گلونه، ځمکې او ... .
**مفرد نوم**: چې یو څیز نوموي، لکه: غر، ځمکه، گل او ... .

ښوونکی دې په دې لاندې پوښتنو د لوست ارزیابي وکړي:
۱ـ د ټول متن د مفهوم په باب څومره پوهېدلي یاست، هغه په لنډیز سره وو ایاست.
۲ـ د څو هغو نعمتونو نومونه واخلئ چې الله ﷻ انسانانو ته وربخښلي دي.
۳ـ دا نړۍ څنگه د آخرت مزرعه او کرونده ده؟
۴ـ د الله ﷻ د قدرتونو او حکمتونو په باب څومره پوهېږئ، په لنډون سره يې بيان کړئ.

۳ـ د ټولگي زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، د یوې ډلې یو زده کوونکی دې د حمدیه شعر د خپلې خوښې یو بیت پر تخته ولیکي، د بلې ډلې یو زده کوونکی دې پخپله خوښه پاڅېږي، د هغې معنا او مفهوم دې پخپله ژبه ټولگیوالو ته ووايي.

۴ـ زده کوونکي دې لاندې لغتونه معنا او په مناسبو جملو کې وکاروي.
ـ اشجار ـ حکمیان ـ سکنات ـ حجاب
ـ مزرع ـ رنځ ـ گنج




زده کوونکي دې د يو شمېر هغو نعمتونو په باب، چې الله ﷻ انسانانو ته ورکړي، څو کرښې ولیکي او په راتلونکي پښتو لوست ساعت کې دې هغه د ټولگیو په وړاندې ولولي.

# دُعــا

لويه خدايه!

موږ له تا څخه مرسته غواړو، موږ ته دې په خپلې لارې باندې د تللو توفيق راکړې!

پروردګاره! زموږ زړونه، ذهنونه او فکرونه د علم او پوهې په رڼا روښانه کړې. موږ ته وس راکړې، چې د خپل ځان، کورنۍ، هېواد او نړۍ په باره کې نېکې هيلې ولرو او ښه ښه فکرونه وکړو.

زموږ په وينا او عمل کې يو والى راولې، چې دنيا مو ودانه او آخرت مو ورباندې ښايسته شي.

خدايه! موږ ته لارښوونه وکړې، چې د خپلو مېندو، پلرونو، استادانو، هېوادوالو او نړيوالو خدمت وکړو.

موږ ته توان راکړې، چې د مشرانو عزت او پر کشرانو شفقت وکړو.

لويه خدايه! موږ نوي ټولګي ته راغلي يو. د دې ټولګي درسونه هم د تېرو په شان ستا په نامه پيلوو.

موږ ته دا توان او وس راکړې، چې په برياليتوب يې سرته ورسوو.

آمين

(يا رب العالمين)



# نـعـت

ـ تاسې د نعت د کلمې په لغوي او اصطلاحي معنا او مفهوم پوهېږئ؟
ـ دمخه مو د پښتو لوست په کتابونو کې د نعت په نوم شعر لوستی دی؟
ـ په نعتیه شعرونو کې، په ځانګړې توګه کوم ډول مطالب بیانېږي؟

نعت په لغت کې غوره او نېکې ستاینې ته وايي. په اصطلاح کې هغه منظومه یا منثوره وینا ده، چې د اسلام د ستر پېغمبرحضرت محمدﷺ صفت او ستاینه پکې شوې وي.

موږ او تاسې د دې ټولګې په دویم لوست کې د یونس خیبري لیکلی نعت لولو.

هـر چـې سـرفـراز وي پـه اسـلام د محمدﷺ
ورد بـه يې ثنا وي صبح و شـام د محمدﷺ
مـيم وحـې د مـيم و دالـه دا څـلور حرفونه
ډېـر شـو مـشـرف پـه ذاتـي نـام د محمدﷺ
((مـيـم)) يې مرتبې ته آسمانونه شـوو د پاسه
عـرش يـې سـر بلند کـا پـه اقـدام د محمدﷺ
تـاج د بـاد شـاهـی يـې پـه سـر شـو لـه درگاهه
کېښو شـو قـدم د عـرش پـه بـام د محمدﷺ
واړه مطالب چې يې خواهش وو له څښتنه
سـم راغـلـه هـمـه واړه پـه کـام د محمدﷺ
((حـی)) چې د ابجد په حسابونو کې اتـه شوه
شـوه اتـه جـنـتـه تـر انـعـام د محمدﷺ
قـد پـه بـزرگـی تـر آسمانونو و د پاسه
ځـکـه سـيـوری نـه درلـود قـيـام د محمدﷺ
کـل عـالـم کـه واړه پـه ثـنـا شـي تـر قيامته
يـو صـفـت بـه نـه کـا تـم تـمـام د محمدﷺ
خـلاص بـه شـي پـه حشر دا آفتاب د گرمايی
نـنوځـه د شـرعـې پـه خـيـام د محمدﷺ
کل مرسل نبي و پاک رسـول و ته محتاج دي
تـول پـه دا گـواه دي خاص و عـام د محمدﷺ
داغ د غـلامـی يـې پـر جبين لـره ((يـونـسـه))!
شـاه دې صـدقـه شـي تـر غـلام د محمدﷺ

یونس خیبری: د پښتو ژبې پیاوړی او خوږ ژبې شاعر دی. په دولسمه هجري پېړۍ کې یې ژوند کاوه، د رحمان بابا د ادبي مکتب له پیروانو او شاګردانو څخه دی.

د شعرونو دیوان یې راپاتې دی. په ۱۳۵۵ لمریز کال د اطلاعات او کلتور وزارت له خوا د څېړندوی عبدالله بختاني په سریزه او تعلیقاتو چاپ او خپور شوی دی.

د متن لنډیز:

هر څوک چې د الله ﷻ له لوري د حضرت محمد ﷺ په راوړي سپېڅلي دین (اسلام) باندې مشرف شي، هغه به پر دغه ستر پېغمبر درود وایي او په ستاینه او ثنا به یې بوخت وي. حضرت محمد ﷺ د الله ﷻ ډېر او تر ټولو غوره بنده دی، چې هغه یې عرش معلی ته وباله. دا د حضرت محمد ﷺ معجزه وه چې سیوری یې پر ځمکه نه پرېوت. د اسلام ستر پېغمبر د داسې ډېرې ستاینې او صفت وړ دی چې که ټول عالم یې ثنا او صفت وایي، نو تر قیامته به یې تمام نه کړي، هغوی چې په رښتینې معنا د حضرت محمد ﷺ شرعي احکام ومني د قیامت په ورځ به له سختې تندې او ګرمۍ څخه وژغورل شي. حضرت محمد ﷺ ته الله ﷻ دا اعزاز او ویاړ هم ورېخښلی دی چې د قیامت په لویه ورځ به ټول نبیان او مرسلان د هغه شفاعت ته اړ وي.

## فعالیتونه

۱_ د ښوونکي له خوا د متن تر لوستلو او لازمو څرګندونو وروسته دې زده کوونکي متن په ډېر دقت په چوپتیا سره ولولي، بیا دې له څو زده کوونکو څخه وغوښتل شي چې په وار سره متن د ټولګیوالو په وړاندې ولولي.

۲ـ د ټولګي زده کوونکي دې پر دريو ډلو ووېشل شي او دې ته دې وګومارل شي چې يوه ډله د متن عربي کلمې، بله دري کلمې او دريمه پښتو کلمې لست کړي، بيا دې د هرې ډلې استازی د ټولګي په وړاندې د کلمو لست ولولي. ښوونکی دې هغه د تختې پر مخ وليکي.

۳ـ ښوونکی دې ستونزمن لغتونه معنا کړي او زده کوونکي دې په نوبت سره د هغو په جملو کې د استعمالولو لپاره تختې ته وربولي. ښوونکی دې د اړتيا په وخت کې مرسته وکړي، زده کوونکي دې هغه پخپلو کتابچو کې وليکي.

۴ـ ښوونکی دې دا لاندې کلمې پر تخته وليکي او له زده کوونکو څخه دې وغواړي چې د هغو متضادې کلمې په خپلو کتابچو کې وليکي:

۱ـ سرفراز ۲ـ سم ۳ـ جنت ۴ـ سيوری ۵ـ صفت

۶ـ غلامي ۷ـ ګرمايي ۸ـ محتاج ۹ـ سربلند ۱۰ـ شام

۵ـ ښوونکی دې د لاندې پوښتنو په کولو د زده کوونکو د پوهېدو کچه و آزمويي:

څوک د لوست مفهوم په لنډو الفاظو ويلی شي؟

الله جل جلاله حضرت محمد ﷺ ته څه ډول اعزاز وربخښلی و؟

د حضرت محمد ﷺ له معجزو څخه يوه بيان کړئ.

د قيامت پر ورځ به نور نبيان او مرسلان ولې د حضرت محمد ﷺ شفاعت ته اړ وي؟




زده کوونکي دې د حضرت محمد ﷺ د ژوند او غوره اخلاقو په اړه څو کرښې مقاله وليکي، په راتلونکي پښتو لوست ساعت کې دې هغه نورو ټولګيوالو ته واوروي.

# پښتانه او پښتو



ـ زموږ په هېواد کې کوم لوی قومونه استوګن دي؟

ـ تاسې له کومو ژبو سره آشنا او لږ و ډېر پرې پوهېږئ؟

زموږ په هېواد کې ګڼ شمېر لوی او واړه قومونه استوګن دي، چې یو واحد ملت یې جوړ کړی دی. پښتانه د دې هېواد تر ټولو لوی قوم او توکم دی، چې څو زره کلن لرغونی جوت تاریخ لري. پښتو د دې قوم او ولس ژبه ده. په دې لوست کې پښتانه د یو لرغوني آریایي توکم او د دوی ژبه (پښتو) د یوې لرغونې آریایي ژبې په توګه درپېژنو.

له تاريخي او توکميزو څېړنو څخه پوره جوته شوې چې پښتانه له اصله او توکمه آريايان او د دوی ژبه ((پښتو)) يوه لرغونې آريايي ژبه ده. دمخه تر دې چې د پښتنو د توکم او د دوی د ژبې د لرغوني تاريخي پس منظر په اړه څه و وايو د لرغوني آرين توکم په اړه به، چې پښتانه هم د هغه يوه برخه وه، لنډ بحث وکړو او د هغه په ترڅ کې به راته په لرغونو آريايي قبايلو کې د پښتون ولس شتون جوت شي.

په عمومي توگه د آرين يا آريانا نوم ډېر لرغونی دی. تاريخ ليکونکي وايي هغه قومونه چې له ميلاد څخه څو زره کاله پخوا د آمو له غاړو څخه په باختر، هند او ايران کې خپاره شول، آرين نومېدل. د آرين کلمه په سنسکريت کې د ((آريا)) او په زند کې د ((ايريا)) په نوم راغلې چې د ((شريف)) او ((نجيب)) معنا لري، په ريگويدا او اوستا کې هم څو ځايه دا نوم راغلی او داسې يادونه شوې چې ((خدای تعالی د آرين توکم پيدا کړ.))

هيرو ډوټ (۴۲۵ _ ۴۸۴ق. م.) هم په خپلو آثارو کې څو ځايه د ((آرين)) يادونه کوي او وايي چې ميدي قومونه پخوا ((آرين)) بلل کېدل.

په پښتو ژبه کې د ((آرين)) کلمې ريښه ((آر)) اوس هم د ((اصل)) او ((بنياد)) په معنا کارول کېږي، لکه د زرغونې کاکړې په دې لاندې شعر کې:

شيخ متي چې خليلي و دی له آره لوی ولي و

مؤرخين وايي چې آريايان له خپل لومړني ټاټوبي څخه تر لېږدېدنې او هجرت دمخه په يوه سيمه کې اوسېدل، چې ((آريانا ويجه)) او د ځينو رواياتو له مخه د ((آريانا ورشه)) په نامه ياده شوې ده. ويل کېږي چې دا يوه غرنۍ سيمه وه، چې لرغونو آريايانو هغه تر ډېره وخته له بهرنيو يرغلونو څخه خوندي ساتلې وه. وروسته بيا د ځای د تنگوالي له کبله دوی کوچېدو ته اړ شول. د آمو د سردريا له سرچينو څخه خپاره شول، په بخدي او باختر کې يې مدنيت جوړ کړ. دغه لرغوني آريايي قبايل له ميلاد څخه دوه نيم زره کاله پخوا ختيځ او لويديځ ته په کوچيدو اړ شول.

د لرغونو آريايانو په مذهبي کتاب ((ريگويدا)) کې د لسو آريايي قبيلو ترمنځ د يوې



جګړې پېښنه یاده شوې، په هغو کې یوه د ((پښتون)) قبیله هم وه، چې هغه د ((پکته)) په نوم یاده شوې او د دوی مشر توریانه (تورې وهونکی) ښودل شوی دی.

هغه لس آریایي قبیلې، چې د ((ویسومترا)) په مشرۍ یې له ((سوداس)) سره جګړه کړې، دا دي:

۱_ پکته (پکتویس = پکهت = پښتون).

۲_ بهالانا (د بولان درې خلک).

۳_ شیوا (چې د اباسین په غاړو کې اوسېدل).

۵_ ویشانن.

۶_ انو (چې د پنجاب د راوي رود پر غاړه اوسېدل).

۷_ د روهیو (دا قوم هم له انو قوم سره یو ځای اوسېده).

۸_ یادو و

۹_ تورو ا شا

۱۰_ پورو (دګندهارا شاوخوا خلک).

همدارنګه د آریانا په دغه مذهبي کتاب کې څو ځایه نور هم د پکتها (پښتون) قوم یادونه شته او د دوی پاچا ((پکتها)) ښودل شوی دی.

د ریګویدا په کتاب کې له لسو قبایلو سره یو ځای او په ځانګړې توګه د پښتون قبیلې یادونې موږ ته راجوتوي چې له میلاد څخه د لږ و ډېر ۱۴۰۰ کاله (له نن څخه درې زره څلوره سوه کاله) پخوا هم پښتون ولس موجود و.

تر ریګویدا وروسته زموږ بل مهم تاریخي سند د ((اوستا)) مذهبي کتاب دی، چې له میلاد څخه ۱۰۰۰ کاله وړاندې په بلخ کې لیکل شوی دی.

په دغه کتاب کې څو ځایه د بخدي نوم راغلی دی او تاریخ لیکونکی په دې عقیده دي، چې په ویدا مذهبي کتاب کې د ((پکتها)) کلمه ((پ)) په ((ب)) ک، په ((ښ)) او ((ت)) په ((د)) اوښتي، نو له ((پکهت)) څخه بخت، پخت، بخد = پښت جوړ شوی او لرغونی پکتها یا بخت وروسته ((بخدی)) د دوی په نامه د ښار نوم شو.





وروسته بیا د یوناني تاریخ لیکونکو په لیکنو کې د ((پښتون)) قبیلې او د هغوی د ټاټوبي یادونه په تفصیل سره شوې ده. په دې لړ کې لومړنی یوناني مؤرخ او جغرافیا لیکونکی هیرو ډوټ (۴۲۵ _ ۴۸۴ ق.م.) دی، چې په خپله مشهوره جغرافیه کې د پښتنو نوم اخلي او د پښتنو هېواد د ((پکتیکا)) په نوم یادوي.

نوموړی لیکي چې دا سیمه د اندوس پر غاړه پرته، خلک یې ډېر غښتلي او مېړني دي. د دوی کالي پوستینان دي، وسلې یې غشي او لیندۍ دي. په دود کې باختري خلکو ته ورته دي.

په همدغه وخت کې چې کله سکای لاس یوناني امیرالبحر د داریوش (۴۸۶ _ ۵۲۱ ق.م.) له خوا د عرب سمندرګي د غاړو د موندنې او کشف لپاره وګومارل شو، نو د پښتنو د ټاټوبي (پکتیکا) په لاره اندوس ته لاړ. نوموړی په خپله سفرنامه کې څو ځله د ((پکتیکا)) یادونه کوي.

وروسته بیا بطلیموس له میلاد څخه دمخه دویمه پېړۍ کې د پښتنو هېواد د ((پکتین)) په نوم یاد کړی او ویلي یې دي چې دا سیمه د پارو پامیزاد سویل ته پرته او د پکتیانو استوګنځی دی.

له دې پورته او داسې نورو یادونو څخه دا جوتېږي چې له میلاد څخه دمخه پېړیو کې هم پښتانه د یو قوم او ولس په توګه خلکو پېژندل او د ریګویدا په کتاب کې یاد شوی ((پکهت)) او د یوناني مؤرخینو او جغرافیا لیکونکو ((پکتهی، پکتیس)) او ((پکتیوس)) یادونو ترمنځ بدلون د یوناني ژبو او لهجو له امله دی.

دا پورتني نظریات وروسته لویدیځو ختیځ پوهانو، لکه ترومپ او ګریرسن هم منلي دي او د جغرافیایي موقعیت له مخې یې پکتیوس ((پښتانه)) وبلل او دا یې د یوې علمي نظرېې په توګه ثابته کړه. اوس تاریخ لیکونکي او توکم څېړونکي په ریګویدا کې یاد شوی ((پکهت)) او د یوناني تاریخ لیکونکو ((پکتیوس)) پښتون ولس ګڼي، نو د پښتنو مدنیت او د دغه ولس د نامه تاریخ ډېر لرغونی دی او لږ تر لږه یې تر (۱۴۰۰ ق.م.) پورې لرغونتیا رسېږي.



## پښتو ژبه:

موږ دمخه دمعتبرو تاریخي سندونو په رڼا کې جوته کړه چې پښتانه د یوې لرغونې آریایي قبیلې او ولس په توګه په (۱۴۰۰ق. م.) کې موجود وو. کله چې ولس او قوم شتون ولري، نو د ژبې شتون یې هم حتمي او لازمي دی.

د تاریخي څېړنو له مخې معلومه شوې چې له میلاد څخه (۳۰۰۰) کاله دمخه لرغونو آریایانو یا آرین قبیلې لومړی د اریک پر نوم په یوه ژبه خبرې کولې او بیا څومره چې خواره واره او یوه خوا بله خوا وکوچېدل، ژبه یې هم لومړی په بېلو بېلو لهجو او وروسته د زمانې په تېرېدو پر ځانګړو ژبو وېشل شوې ده.

په دغه لړ کې پښتو هم یوه زړه او لرغونې آریایي ژبه ده، چې د نسبتي ((و)) په زیاتوالي سره د پښت ـ پکهت تېر ته منسوبېږي او پښت یا پکهت هماغه ستره آریایي قبیله ده، چې لږ و ډېر ۳۴۰۰ کاله پخوا یې د ریګویدا په سندرو یا مذهبي سرودونو کې یادونه شوې ده.

د زیاترو ختیځ پوهانو په نظر لرغونې پښتو، سانسکریت او اوستا د خویندو ژبو په نومونو یادېږي، چې اوس سانسکریت او اوستا مړې او یوازې پښتو د یوې ژوندۍ ژبې په توګه پاتې ده.

پښتو د لرغونې آریانا (اوسني افغانستان) هغه لرغونې ژبه ده، چې له زرګونو کلونو راهیسې د دې خاورې اوسېدونکې پرې غږېدلي، بډای ادب او فرهنګ لري.

پښتو هغه ژبه ده چې په همدغه لرغونې سیمه کې زېږېدلې، د ودې او پرمختیا پړاوونه یې وهلي او دې اوسني حالت ته رارسېدلې ده. د زمانې په دې اوږده بهیر کې کله کله له خنډونو سره مخامخ شوې او کله کله یې بیا د پرمختګ لپاره د روزنې او پالنې لاسونه هم پر سر تېر شوي دي.

د زمانې اوښتون، د دې خاورې حساس جغرافیوي موقعیت او پر دې هېواد او سیمه د بهرنیو یرغلونو او کورنیو خپلمنځي جګړو په پایله کې د پښتو ژبې د فرهنګي پانګې ډېره برخه له منځه تللې له خاورو سره خاورې شوې ده. تر اسلام دمخه د پښتو ژبې کومه



لیکلي بېلګه اوس زموږ په لاس کې نشته، چې دغې ژبې به څه ډول لیک درلود، خو دا چې په دغه سیمه کې یوناني، خروشتي، ارامي او ځینې نور لیکونه دود وو، پښتو ژبې به هم خامخا له دغو لیکدودونو څخه یو خپل کړی و.

کله چې زموږ په هېواد (لرغوني افغانستان) کې د اسلام سپېڅلی دین خپور شوی، تر هغې را وروسته پښتنو هم د لرغوني افغانستان د نورو توکمونو او قومونو په څېر د خپلې ژبې د ثبت او لیکلو لپاره عربي لیکدود خپل کړی او د پښتو د ځانګړو اتو غږونو لپاره یې د تورو ځانګړې بڼې (ډ، ړ، ږ، ښ، ځ، څ، ټ، ڼ) ټاکلې دي.

پر پښتو ژبې اوس له افغانستان او پښتونخوا سربېره د نړۍ په نورو هېوادونو کې تر پنځوس میلیونو زیات وګړي غږېږي، بډای لیکلي او شفاهي ادبیات او په ډله ییزو رسنیو کې غږیزې او چاپي خپرونې هم لري.

د متن لنډیز:

په دې لوست کې مو ولوستل چې پښتانه یو لرغونی آریایي توکم او پښتو لرغونې آریایي ژبه ده. پښتون ولس لرغونی تاریخي پس منظر لري او د آریایي او د اَریایي توکم دغه قبیله له نن څه لږ و ډېر ۳۴۰۰ کاله وړاندې د آریایانو په مذهبي سرودونو (ریګویدا) او بیا وروسته د ۱۰۰۰ق.م. شاوخوا په (اوستا) کې یاده شوې ده. سربېره پر دې یوناني تاریخ پوهانو، لکه هیروډوټ هم د پښتون قوم او د هغوی د ټاټوبي (پکتیکا) یادونه کوي.

هغسې چې ۳۴۰۰ کاله وړاندې د پښتون ولس شتون جوت دی، نو ویلی شو چې ولس موجود و، ژبه به یې خامخا موجوده وه، نو د پښتو ژبې لرغونتیا هم ۳۴۰۰ کاله وړاندې زمانې ته رسېږي.

پښتو د لرغونې آریانا (اوسني افغانستان) هغه لرغونې ژبه ده، چې له زرګونو کلونو راهیسې پرې د دې هېواد اوسېدونکي غږېدلي، له بډای ادب او فرهنګ نه برخمنه ده.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې د ښوونکي له متن لوستنې او لازمو څرګندونو وروسته د متن یو یو پراګراف په وار سره ولولي. ښوونکی دې د اړتیا په وخت کې لازمه مرسته وکړي.

۲ـ زده کوونکي دې وګومارل شي چې متن په غور او دقت سره ولولي، پر هغو کلمو یا لغتونو چې نه دي پوهېدلي، هغه دې له ځان سره لست کړي. بیا دې په ترتیب سره هر زده کوونکی خپلې لست کړې ستونزمنې کلمې د ټولګي په وړاندې ولولي.

۳ـ ښوونکی دې د زده کوونکو د لست کړیو ستونزمنو کلمو مجموعي توحیدي لست د تختې پر مخ ولیکي. ځینې کلمې دې پخپله د زده کوونکو په وسیله معنا کړي او هغه چې زده کوونکي یې نشي حل کولی پخپله دې یې حل او توضیح کړي.

۴ـ زده کوونکي دې د تختې پر مخ لیکل شوي لغتونه پخپلو کتابچو کې ولیکي.

۵ـ زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي، یوه ډله دې وګومارل شي چې د متن لومړۍ برخه، چې د پښتنو د اصل او نسب په هکله ده او بله ډله دې د متن دویمه برخه، چې د پښتو ژبې په هکله ده، په غور او دقت سره په چوپه خوله ولولي. بیا دې د لومړۍ ډلې یو یو زده کوونکی د ټولګي په وړاندې د متن معنا او مفهوم پخپله ژبه ووایي، وروسته دې د دویمې ډلې یو یو زده کوونکی د ټولګي په وړاندې د پښتو ژبې په هکله د متن معنا او مفهوم پخپلو لنډو الفاظو ټولګیوالو ته ووایي. ښوونکی دې له ټولو زده کوونکو سره د اړتیا په وخت کې د مفاهمو د افادې د سمون لپاره لازمه مرسته وکړي.



۶ـ په دې لاندې پوښتنو دې د لوست د زده کړې د کچې ارزونه وشي:

- د پښتنو اصل له کوم توکم څخه دی؟
- د پښتون قوم د لرغونتیا تاریخي پس منظر څو زره کاله وړاندې زمانې ته رسېږي؟
- په کوم لرغوني کتاب کې د نورو لسو آریایي قبیلو ترڅنګ د پښتون قوم یادونه هم شوې ده؟
- د پښتو ژبې لرغونتیا کومې زمانې ته رسېږي؟
- کومو یونانې پوهانو په خپلو کتابونو کې د پښتنو او د هغو د هېواد او ټاټوبي یادونه کړې او هغه په کومو نومونو نومولی دی؟
- له اسلام څخه دمخه په افغانستان کې کوم لیکدودونه رواج وو؟
- پښتو ژبې د ثبت او لیکلو لپاره اوس کوم لیکدود کارول کېږي؟
- په پښتو ژبه اوس په افغانستان، پښتونخوا او نوره نړۍ کې څومره وګړي خبرې کوي؟




زده کوونکي دې د کورنۍ دندې په توګه د لوست مفهوم په خپلو لنډو الفاظو کې ولیکي، د پښتو لوست په راتلونکي ساعت کې دې هغه د نورو ټولګیوالو په وړاندې ولولي.

# د کمپیوټر او انټرنیټ اهمیت
## (خبري اتري)

- تاسې کمپیوټر پېژنئ چې څه ډول وسیله ده او د څه لپاره کارول کېږي؟
- د انټرنېټ له نامه سره آشنا یاست، څه معنا او مفهوم لري؟

کمپیوټر نن سبا په ژوندکې د ساینس او پرمختګ ډېره مهمه وسیله ده، چې بشر ته یې سترې اسانتیاوې را پیداکړې دي. نه یوازې دا چې پر هغې لیکنه کولی شو، بلکې نورې ډېرې چارې، لکه: محاسبه، انځور کښنه، جدول جوړونه او داسې نور د همدې وسیلې په واسطه سرته رسېږي او هم د کمپیوټر د زده کړې په صورت کې له انټرنېټ څخه، چې نړۍ یې د یو کلي په څېر سره رانږدې کړې د ټولې دنیا له حالاتو څخه خبرېدای شو، نو ځکه دا اړتیا ده چې هر څوک یې زده کړي او ورته لاس رسي ولري.

په دې لوست کې مو تاسې زده کوونکو ته د کمپیوټر او انټرنېټ د پېژندنې او اهمیت په اړه ځینې خبرې اترې راوړي، چې هم به مو له دغو وسیلو سره آشنا کړي او هم به مو په پښتو ژبه د خبرو اترو کولو ځواک پیاوړي کړي.

ایمل: دا دی له خبره سره ټول سوالونه مې حل کړل، که دا کمپیوټر نه وای په دوو ورځو کې مې هم حل کولی نشول.

جمیل: ایمله څنګه داسې شپه او ورځ په دغه ماشین لګیا یې، ټک او ټوک دې شروع کړی دی راځه، چې لږ ساعت د فوټبال لوبه وکړو.

ایمل: جمیله، فوټبال خو په خپل وخت کې کوو، ته راشه چې تا ته هم کمپیوټر درزده کړم.

جمیل: ستا ډېرې خبرې یادې دي، هسې خپل ماغزه ولې اوبه کړم.

ایمل: جمیله، دا خبره مه کوه تردې وروسته چې د چا کمپیوټر نه وي زده هېڅ چېرته هم کار نه شي کولای.

جمیل: مکتب چې یې ویلی وي، لیک او لوست یې چې زده وي څنګه کار نشي کولای؟

ایمل: دا خبره خو دې سمه ده، خو له دې وروسته په دفترونو کې خلک په قلم کاغذ باندې څه نه لیکي، ټول کارونه په کمپیوټر کېږي، په کمپیوټر.

جمیل: په کمپیوټر، دا څه وایې، نو خلک به څه کوي؟

ایمل: خلک مجبوره دي چې ټول کمپیوټرونه زده کړي.

جمیل: نو کمپیوټر باندې، خو یوازې خط لیکل کېږي دا نور کارونه به څنګه کړي؟

ایمل: و ساده ګله، یوازې خط نه، چې وایم د دنیا هر کار پرې کېږي.

جمیل: خو ما هم پرې پوه کړه چې کوم کارونه پرې کېږي؟

ایمل: خط لیکل، محاسبه، د انجینری نقشې جوړول، عکسونه اخیستل، آشنا خو څه به درته وایم نن سبا په دنیا کې داسې کار نشته چې په کمپیوټر نه کېږي.

جمیل: نه بابا چې داسې ده، زه خو په کور کې کمپیوټر نه لرم دا به څنګه زده کوم؟

ایمل: هېڅ غم مه کوه د ورځې یو ساعت زموږ کور ته راځه زه یې درسره په یادولو کې مرسته کوم.

جمیل: یاره ایمل انډیواله ته خو دې تر ډېره ژوندی اوسې.



ایمل: ته دې هم ژوندی اوسې.

جمیل: دا دومره کاغذونه دې څنګه مخې ته ایښې دي، په دې کې خو ځینې چاپ شوي هم دي کنه.

ایمل: هو، دا مې خو په دې کمپیوټر کې د یوې موضوع په اړه تحقیق او پلټنه وکړه او له کمپیوټر څخه مې ډېر معلومات ترلاسه کړل.

جمیل: څه، څه تحیقیق، په کمپیوتر کې دې څه رقم تحقیق وکړ. کتابونه دې په کې لیکلي دي.

ایمل: کمپیوټر سره یو لین نښلول کېږي، چې انټرنېټ ورته وایي تحقیق مې په هغې کې وکړ.

لیلما: السلام علیکم ستړي مه شئ.

دواړه: وعلیکم السلام.

جمیل: لیلما دا کمپیوټر خو هم عجیبه شی دی او دا بل شی، چې اوس یې ایمل نوم واخیست دا خو بیخې عجیبه شی دی، نوم یې څه شی و ؟

ایمل: انټرنېټ، په دې کې لیلما له ما نه هم ډېره ښه پوهېږي.

لیلما: هو انټرنېټ خو نن سبا په دنیا کې ډېر غټ پرمختګ دی.

جمیل: په دې نو کوم کوم کارونه کېږي، له تحقیق نه پرته ؟

لیلما: په انټرنېټ کې خلک کولای شي د نړۍ په ډېرو ژبو او په خاص ډول په انګرېزۍ ژبه د هر شي په باره کې تحقیق کوي او معلومات پیدا کولای شي.

جمیل: څومره ښه، د هر شي په باره کې په کې معلومات وي ؟

لیلما: د هر هغه شي په باره کې په کې معلومات وي، چې انسانانو لیکلي او انټرنېټ ته یې ورکړي دي.

جمیل: ښه نور پرې کوم کارونه کېږي ؟

لیلما: نور دا چې په انټرنېټ باندې یو ازې په څو دقیقو کې د دنیا هر ملک ته خطونه هم استولای شو. یو بل سره په هماغه وخت کې خبرې هم کولای شو.



ایمل: او جمیله اوس پرې خلک له یو ملک نه بل ته پیسې هم لېږي رالېږي.

جمیله: دا بانکونو والا له همدې لارې پیسې لېږي، لکه زما دتره زوی ته له جرمني نه یې خپل ماما ته پېسې راواستولې.

ایمل: بالکل له همدغې لارې یې اوس خلک رالېږي.

لیلما: بل دا چې خلک اوس په انټرنېټ کې سوداګري هم کوي. د یو چا چې څه شی په کار وي کارخانې والا ته یې د هغوی په آدرس لیکي چې ما ته دومره مال راولېږه او ما دومره پېسې ستاسو په پته درولېږلې. کارخانې والا لومړی پېسې اخلي، بیا هغه سړي ته مال لېږي.

جمیل: په رښتیا چې دا خو عجیبه شی دی، کاشکې زما هم یاد وای.

لیلما: داګوره جمیله په دې انټرنېټ باندې په سلګونو کارونه نور هم کېږي.

ایمل: خو زما نه دی زده نو ...

لیلما: خیر دی د دې لپاره چې انټرنېټ زده کړې اول باید کمپیوټر زده کړې. په کمپیوټر کې به درسره زه مرسته وکړم.

جمیل: ښېخې سمه ده سر له همدې نن ورځې څخه زه کمپیوټر زده کول شروع کوم، اوس نو ځمه کور ته د خدای په امان.

دواړه: په مخه دې ښه.

د متن لنډیز:

کمپیوټر نن سبا په ژوند کې د ساینس د پرمختګ خورا مهمه لاسته راوړنه ده، چې بشریت ته یې ډېرې سترې اسانتیاوې رامنځته کړې دي. په کمپیوټر کې نه یوازې لیکنه کېدلای شي، بلکې ډېر پېچلې موضوعات او مسایل، لکه انځورونه، محاسبه، ډېر مغلق جدولونه او نورې چارې ترسره کېدلای شي او همدارنګه د کمپیوټر په زده کړې سره کولای شو چې له انټرنېټ څخه هم ګټه واخلو او د نړۍ د بېلا بېلو هېوادونو

د علمي پرمختګ، اقتصادي غوړېدنې او نورو څېړنیزو موضوعګانو په اړه په څو شېبو کې د خپلې غوښتنې وړ معلومات ترلاسه کړو. د نړۍ په پرمختللو هېوادونو کې نوې نسل ټول د کمپیوټر په کارونه او زده کړې پوهېږي، همدغه لامل دی، چې له انټرنېټ څخه هم ګټه اخیستلای شي. له نېکه مرغه د ساینس دغه غوره لاسته راوړنې زموږ هېواد ته هم لاره موندلې، نن سبا ډېر ځوانان د کمپیوټر په زده کړه بوخت دي او د انټرنېټ په کارولو هم بریالي دي چې داکار زموږ د راتلونکي نسل سره د لازیاتو عملي پرمختګونو په هکله زیاته مرسته کولای شي.




۱ـ زده کوونکي دې لوست په چوپتیا سره ولولي او د هغه مفهوم دې په خپل ذهن کې وساتي.

۲ـ د ښوونکي د تدریس په مهال دې زده کوونکي غوږ ونیسي، چې د کلمو په سم تلفظ او د جملو په جوړولو پوه شي.

۳ـ یو زده کوونکی دې د کمپیوټر د اهمیت او ارزښت په اړه څو جملې ووایي او بیا دې د هغو څخه یوه غوره جمله د تختې پر مخ ولیکي. بل زده کوونکی دې د تختې مخې ته راشي د نومورې جملې په هکله دې خپله خبرې وکړي.

۴ـ ښوونکی دې د ټولګي ټول زده کوونکي پر دوو ډلو ووېشي او هغوی ته دنده ورکوي، چې لومړۍ ډله د کمپیوټر په اړه او دویمه ډله د انټرنېټ په هکله څو جملې ولیکي، بیا دې یو تن استازی د ټولګي مخې ته راشي او خپل معلومات دې نورو ټولګیوالو ته وړاندې کړي، د هرې ډلې معلومات چې سم او غوره وي ښوونکی دې هغه

ډله وستايي.

۵_ يو زده کوونکی دې د تختې مخې ته راشي د کمپيوټر د ډولونو په اړه دې خپل معلومات نورو ټولګيوالو ته وړاندې کړي.

۶_ څو تنه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي او د ايمل او اجمل له خبرو اترو څخه په استفادې سره دې د لوست مفهوم په ساده ژبه نورو ټولګيوالو ته بيان کړي.

۷_ څو تنه زده کوونکي دې په وار سره ووايي چې تر دې وروسته د کمپيوټر او انټرنېټ د زده کړې او له هغو څخه د کار اخيستلو په هکله څه ډول تصميم لري او خپله پرېکړه دې نورو ټولګيوالو ته ووايي.

۸_ کوم زده کوونکي د کمپيوټر د زده کړې په اړه کتابونه لوستلي دي او که نه، که چېرته يې لوستې وي، د هغو نومونه دې ووايي او خپلو نورو ټولګيوالو ته دې په دغه اړه معلومات وړاندې کړي.




زده کوونکي دې د کمپيوټر او انټرنېټ د اهميت او ارزښت په اړه يو يا دوه مخه مقاله وليکي او په راتلونکي درسي ساعت کې دې يې خپلو ټولګيوالو ته ولولي.

د خدایﷻ په وړاندې تر ټولو ګران بنده ګان متقيان او پرهېزګاران دي

# پیر محمد کاکړ



ـ تاسې د پښتو په پخوانیو شاعرانو کې د چا له نوم سره آشنا یاست؟

ـ د کومو پخوانیو شاعرانو شعرونه مو لوستي دي؟

د پښتو د ادبي تاریخ دویمه (منځنۍ) یا کلاسیکه دوره د پښتو ژبې او ادبیاتو د ودې او پرمختیا یوه زرینه دوره بلل کېږي. په دغه ادبي دوره کې ډېر پیاوړي شاعران او لیکوالان رامنځته شوي، چې د نظم او نثر د زیات شمېر کتابونو په لیکلو یې د پښتو ادبي پانګې ته ډېر بډاینه وربخښلې ده. د دغې دورې په نومیالیو ادیبانو کې یو هم پیرمحمد کاکړ دی، چې د خپل وخت نومیالی دیني عالم هم و، شاعر او لیکوال هم. په دې لوست کې یې درپېژنو:

پیرمحمد کاکړ د پښتو ژبې نومیالی شاعر، لیکوال او عالم دی. د زیږېدنې کال یې په دقیقه توګه نه دی معلوم، ادبي څېړونکي یې د ۱۱۲۰هـ.ق. او ۱۱۳۰هـ.ق. ترمنځ کلونه اټکلوي. د سهیلي پښتونخوا د کاکړستان د ژوب د هندوباغ د سیمې د ((یعقوبي)) کلي استوګن و.

پیرمحمد کاکړ په ځوانۍ کې د دیني علومو په زده کړې پسې کندهار ته، چې د هوتکیانو د واکمنۍ په وخت (۱۱۱۹ ــ ۱۱۵۰هـ.ق.) کې زموږ د هېواد پلازمینه او علمي ــ کلتوري مرکز و، تللی و. هلته یې له نومیالیو علمانو څخه زده کړې، کړې وې. په کندهار کې د پوره نوم او شهرت خاوند شوی او بیا خپلې سیمې کاکړستان ته تللی و.

لوی احمد شاه بابا چې د خپلې واکمنۍ پر وخت (۱۱۶۰ هـ.ق. ۱۱۸۶هـ.ق.) د پیرمحمد کاکړ له علمي او ادبي شهرت نه خبر شوی، څو ځل یې کندهار ته د ورتګ بلنه ورکړې وه، خو هغه نه وه منلې، بالاخره په هره وسیله چې و، اړیستل شوی و چې کندهار ته ورشي.

پیرمحمد کاکړ ته په احمدشاهي دربار کې د دیني او ادبي علومو د تدریس چارې ورسپارل شوې او د لوی احمدشاه بابا زوی شهزاده سلیمان یې له ځانګړو شاګردانو څخه و، چې په پوره اهتمام یې د هغه د علمي او ادبي روزنې چارې ترسره کولې.

د احمدشاه بابا د مړینې پر وخت (۱۱۸۶هـ.ق. کال) چې د هغه مشر زوی شهزاده تیمور په هرات کې و، لومړي وزیر شاه ولي خان له موقع څخه په استفادې خپل زوم، د احمدشاه بابا کشر زوی شهزاده سلیمان، پاچا کړ. پیرمحمد کاکړ د خپل خاص شاګرد په واکمنۍ ډېره خوښي څرګنده کړه او خپل یو تالیف کړی کتاب ((معرفت الافغاني)) چې درباریانو ته یې د پښتو ژبې د لیک لوست زده کړې لپاره لیکلی و، نوموړي واکمن ته وړاندې کړ، خو دا چې د شهزاده سلیمان د واکمنۍ موده ډېره لنډه وه، د تیمور په راتګ سره یې له واکمنۍ څخه لاس واخیست او هغه د تیمور شاه په نوم واکمن شو.

د پیرمحمد کاکړ د شعرونو له مطالعې څخه ښکاري چې د تیمور شاه د واکمنۍ په دوره کې له شهزاده سلیمان سره د ډېرو نږدې اړیکو له امله دده ته په دربار کې خپل



پخوانی قدر، عزت او درناوی نه دي پاتې، خو بیا هم په بشپړه توګه له پامه هم نه دي غورځېدلی.

له تېمور شاه څخه وروسته د شاه زمان او شاه محمود سدوزي د واکمنیو په وخت کې هم د دربار په نومیالیو عالمانو او ادیبانو کې یاد و. د شاه محمود سدوزي له هغه فرمان څخه، چې پر ۱۲۱۶هـ.ق. کال خپور شوی، داسې څرګندېږي چې پیرمحمد کاکړ هم دغه مهال د نورو عالمانو په څېر له دربار څخه امتیاز او مواجب ترلاسه کاوه.

سربېره پر دې چې پیرمحمد کاکړ د خپل وخت له نومیالیو دیني پوهانو او مدرسینو څخه و، د پښتو او دري ژبو تکړه شاعر، ژبپوهاند او تاریخ لیکونکی هم و. د پښتو او دري ژبو د لرغوني او خپلې زمانې د ادبیاتو ژوره مطالعه یې درلوده، په ادبي فنونو، فصاحت او بلاغت ښه پوهېده او د استادۍ مقام ته رسېدلی و. نوموړی د یو ځانګړي ادبي سبک او لارې خاوند و، چې په خپله زمانه او راوروسته وختونو کې نورو ډېرو شاعرانو د هغه پیروي کړې او د ده د لوړ ادبي مقام یادونه او ستاینه یې په ډېر درنښت کړې ده.

پیرمحمد کاکړ د تدریس د چارو ترڅنګ یو شمېر د نظم او نثر کتابونه هم لیکلي دي، هغه چې د زمانې له توپاني سیلیو راپاتې دي، دلته یې په لنډه توګه درپېژنو:

۱ـ د اشعارو دیوان: پیرمحمد کاکړ د خپلو شعرونو دیوان پر ۱۱۹۶هـ.ق. بشپړ کړی دی. دا دیوان لومړی ځل پر ۱۳۰۳هـ.ق. کال په هند او دویم ځل پر ۱۳۲۵ لمریز کال په کابل کې پښتو ټولنې او په دې وروستیو کې په کوېټه او پېښور کې بیا بیا چاپ شوی دی.

۲ـ معرفت الافغاني: دا کتاب د دې لپاره لیکل شوی چې د وخت واکمنو درباریانو ته پښتو لیک لوست زده کړي او په نتیجه کې د دربار او دفتر ټولې رسمي لیکنې په پښتو کړي.

دا کتاب لومړی ځل په ۱۳۴۱هـ.ق. کال په لاهور او دویم ځل په ۱۳۵۶لمریزکال په کابل کې چاپ او خپور شوی دی.





۳ـ د پښتنو تاريخ: وايي چې پيرمحمد کاکړ د احمدشاه بابا په امر د پښتنو يو تاريخ هم په پښتو ژبه ليکلی و. د دې کتاب يوه قلمي نسخه د اميرعبدالرحمان په دربار کې موجوده او د دربار منشي ملامحمد خان افغان نويس ته سپارل شوې وه، خو له ۱۳۰۰هـ.ق. راوروسته تر ننه ورکه ده.

۴ـ هدايت المبتدي: د اسلامي فقهې د ابتدايي مسايلو کتاب دی، چې پيرمحمد کاکړ په دري ژبه نظم کړی، قلمې نسخه يې شته دي.

پر دې پورتنيو آثارو سربېره د پيرمحمد کاکړ د ديوان د يوې قلمي نسخې په پای کې څو پاڼې د قلمي نسخې د خطاط په قلم کښل شوي، چې پښتو نثريې روان، د جنت او قيامت د ورځې په هکله بحث دی. ځينې ادبي څېړونکي دا اټکل کوي چې دا هم کېدای شي د پيرمحمد کاکړ کوم اثر وي، چې نوم به يې ((قيامت نامه)) يا ((جنت نامه)) و.

د وروستيو ادبي تاريخي څېړنو له مخې د پيرمحمد کاکړ ژوند تر ۱۲۱۶هـ.ق. کال پورې يقيني دی، خو دا چې وروسته به په کوم کال مړ شوی وي، نه ده معلومه. دومره څرګنده ده چې په کندهار کې وفات شوی او د شاه ولې پر غاړه په لويه هديره کې د حضرت جي صاحب زيارت ته نږدې ښخ او قبر يې معلوم دی.

دلته يې د شعر يوه بېلګه لولو:

بند پر بند دې غوښ د سترګو په خنجر کړم  بيا سيراب دې هم په وينو د ځيګر کړم
هر سحر چې کړې ناله پر ګل له سوزه  عشق مدام هغه بلبله د سحر کړم
درسته شپه راته اغزي شي د کيکرو  بې له تا چې خواب د پرو پر بستر کړم
سوز ګداز د محبت مې دې نصيب کړ  په سره اور کې دې دلبره سمندر کړم
ته يو دم زما و لور ته عزم نه کړې  زه له ځانه ستا و لورو ته سفر کړم
يو نظر د تورو سترګو عنايت کړه  په دربار کې دې له غمه خاکستر کړم

ساقي را کړه يو ځل مې د لعلو لبو
چې پرې يخ زه پير محمد سوی تېر کړم



د متن لنډیز:

پیرمحمد کاکړ د پښتو ادبیاتو د کلاسیکې یا منځنۍ دورې پیاوړی لیکوال او شاعر و، چې د زوکړې زمانه یې ۱۱۲۰هـ.ق. ـ ۱۱۳۰هـ.ق. کلونو ترمنځ اټکل شوې ده. اصلاً د سهیلي پښتونخوا د ژوب اوسېدونکی و. د احمدشاه بابا د واکمنۍ پر وخت د هغه په غوښتنه کندهار ته راغلی او په دربار کې د دیني علومو د تدریس دنده ورسپارل شوې وه. تر ۱۲۱۶هـ.ق. کال پورې یې ژوند یقیني دی.

د نظم او نثر یو شمېر لیکلي کتابونه یې راپاتې دي، چې د نوموړي د لوړ علمي، ادبي او فرهنګي شخصیت ځرګندویې کوي. دغه آثار یې ځرګند دي: د شعرونو دیوان، معرفة الافغاني او هدایت المبتدي.




۱ـ زده کوونکي دې په وار سره د متن یو یو پرګراف ولولي، استاد دې د اړتیا په وخت کې مرسته وکړي.

۲ـ زده کوونکي دې د ټولګي په وړاندې د پیرمحمد کاکړ د ژوند او شخصیت په اړه خبرې وکړي.

۳ـ زده کوونکي دې متن په چوپه خوله په غور او دقت سره ولولي او په هغه کې دې ادات په نښه کړي، هر یو دې په نښه کړي ادات په خپل وار د ټولګي په وړاندې ولولي. ښوونکی دې د اړتیا په وخت کې مرسته وکړي. په متن کې د موجودو اداتو یو بشپړ لست دې له هغو څخه ترتیب او د تختې پرمخ ولیکي.

ادات:

هغه ناخپلواکه کلمې دي چې په ځانګړې توګه کومه معنا او مفهوم نه افاده کوي، خو کله چې له نورو خپلواکو کلمو سره په جملو کې یو ځای شي، نو بیا معنا ورکوي. ادات د جملو په جوړښت او رغونه کې اساسي ونډه لري او پرته له هغو جملې نه

جوړېږي. ادات دا لاندې ډولونه لري:

(۱) ارتباطي ادات، لکه: هسې، که څه هم او داسې نور. (۲) د عطف ادات، لکه: او، که، یا او نور. (۳) د اضافت ادات (د)، لکه: د احمد قلم. (۴) تشبیهي ادات، لکه: غوندې، په څېر، په دود، په توګه او نور.

۴ـ زده کوونکي دې په وار سره تختې ته وروبلل شي چې هر یو ادات په جمله کې استعمال یا د یو ادات په مرسته یوه جمله جوړه کړي. نور زده کوونکي دې هغه په خپلو کتابچو کې ولیکي.

۵ـ ښوونکی دې په دې لاندې پوښتنو د لوست د زده کړې ارزونه وکړي:

- پیرمحمد کاکړ د کوم واکمن په عصر کې ژوند کاوه او په دربار کې کومه دنده ورسپارل شوې وه.
- پیرمحمد کاکړ اصلاً د پښتونخوا د کومې سیمې اوسېدونکی و، د چا په غوښتنه کندهار ته راغلی و.
- د پیرمحمد کاکړ د نظم او نثر کوم کتابونه لیکلي دي؟
- د پیرمحمد کاکړ ژوند تر کوم کال پورې یقیني دی؟
- د پیرمحمد کاکړ د شعر مفهوم بیان کړئ.

۶ـ زده کوونکي دې د پیرمحمد کاکړ د شعر یو یو بیت په لوړ غږ خپلو ټولګیوالو ته ولولي.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپله خوښه د کورنۍ دندې په توګه د پښتو د کلاسیکې دورې د کوم شاعر د ژوند په باب لنډ معلومات ولیکي او په راتلونکي پښتو درسي ساعت کې دې هغه نورو ټولګیوالو ته ولولي.

# د پښتو ادب معاصره دوره



ـ تاسې د ادبیاتو د تاریخ له نامه او اصطلاح سره آشنا یاست، پوهېږئ چې ادب تاریخ څه ته وایي؟

ـ تاسې د ادبیاتو په تاریخ کې د ادبي دورې نوم اورېدلی دی؟

ـ دمخه ټولګیو کې مو د پښتو ادبي تاریخ کومې دورې لوستې دي؟

ـ معاصره ادبي دوره څه معنا او مفهوم لري؟

د ادبیاتو تاریخ، د تاریخ په بېلا بېلو دورو کې د یوې ژبې د ادبیاتو د ودې او پرمختیا جریان او بهیر څېړي. د هرې ژبې ادبیات په تاریخي لحاظ په څو بېلا بېلو دورو وېشل کېږي.

همدې اصل ته په کتنې سره د پښتو ژبې ادبیات هم په بېلا بېلو تاریخي دورو بېلېږي. تاسې د ښوونځي په مخکنیو ټولګیو کې د پښتو ادبیاتو لرغونې دوره او منځنۍ یا کلاسیکه دوره ولوستله، په دې ټولګي کې به د پښتو معاصره ادبي دوره ولولئ.

ادبي دوره د ادبیاتو په تاریخ پورې اړه لري. دلته چې موږ د پښتو ادب تاریخ په معاصره ادبي دوره بحث کوو، نو لازمه ده چې لومړی د ادبیاتو تاریخ وپېژنو.

د ادبیاتو تاریخ یا ادبي تاریخ د ادبپوهنې د یوې مهمې او اساسي څانګې په توګه هغه پوهنه ده چې د یوې ژبې د ادبیاتو د پیدایښت او ودې جریان له تاریخي شرایطو سره د ارتباط په ترځ کې څېړي.

د هرې ژبې او ولس ادبي تاریخ په بېلا بېلو دورو وېشل کېږي، نو د همدې معیار له مخې پښتو ادبي تاریخ هم په دریو سترو دورو وېشل شوی، چې لومړۍ یا لرغونې او کلاسیکه یا منځنۍ دورې مو دمخه ټولګیو کې لوستي دي، اوس د پښتو معاصره ادبي دوره درپېژنو.

موږ په خپلو ادبي څېړنو کې د پښتو ادب تاریخ د دریمې یا معاصرې دورې د پیلامې په هکله بېلا بېل نظرونه لرو: ځینې د دې ادبي دورې پیل هند ته د انګرېزانو د راتګ وخت ګڼي او ځینې نور زموږ پر هېواد باندې د انګرېزانو لومړنی یرغل (۱۸۳۹م.) د پښتو د معاصر ادب پیلامه بللې ده.

ځینو څېړونکو د نولسمې میلادي پېړۍ په اوولسمو کلونو کې د پښتو د هنري ـ ادبي نثر پیدایښت د پښتو د معاصرې ادبي دورې پیلامه بولي. همدارنګه ځینو څېړونکو د پښتو د معاصر ادب د ودې او پرمختیا لومړنی پړاو د امیر حبیب الله خان په عصر کې د سراج الاخبار رامنځته کېدل بولي.

خو د پښتو ادب زیاتره څېړونکي په دې خبره یوه خوله دي، چې د پښتو د معاصر ادب د رامنځته کېدو لپاره د نولسمې پېړۍ په اوولسمو کلونو کې لارې چارې او شرایط برابر شوي دي. دا وخت زموږ په هېواد کې د امیر شېرعلي خان د دویمې پلا واکمنۍ سره برابره ده. امیر شېرعلي خان چې په ۱۲۸۶هـ.ق. (۱۸۶۹م.) کال د هند امبالې له کنفراس څخه راوګرځېد، نو کورنیو اصلاحاتو ته یې خپله پوره پاملرنه واړوله او یو لړ داسې ریفورمونه یې پلي کړل، چې په هغو کې د ځمکو د مالیاتو اصلاح او سمون، د



پوستي عصري سيستم تأسيس، عسكري تشكيلاتو، عصري ښوونځيو او روغتونونو رامنځته کول او داسې نور سمونونه او بدلونونه شامل وو. همدغه مهال امير شېرعلي خان خپلې ملي ژبې پښتو ته ځانګړې پاملرنه وکړه او په دې لړکې چې هغه کوم لومړی ګام پورته کړ، هغه د هېواد د ملکي ادارو نومونه، عسکري رتبې، اصطلاحات او قوماندې په پښتو ژبه اړول وو. د اميرشېرعلي خان د فرمان له مخې د عسکري قواعدو کتاب قاضي عبدالقادر په پښتو وژباړه او چاپ شو.

د واک پر سر کورنيو جګړو او بهرنيو يرغلونو دا بهير يو څه ټکنی کړ او بيا د حبيب الله د واکمنۍ پر مهال ډېر ګړندی پيل او پرمخ لاړ. ادبي څېړونکو د پښتو ادب معاصره دوره، چې د نولسمې ميلادي پېړۍ د اويايمې لسيزې څخه پيل او تر ننه رارسېږي په دې لاندې ښېلو ښېلو پړاوونو وېشلې ده:

## لومړی پړاو (۱۸۷۰م. ـ ۱۹۰۱م.):

د پښتو د معاصرې ادبي دورې لومړی پړاو په زماني لحاظ د نولسمې عيسوي پېړۍ له اويايمو کلونو څخه پيل او د شلمې پېړۍ تر پيلامې يا د امير حبيب الله خان د واکمن کېدو تر وخته رارسېږي.

په دغه پړاو کې د پښتو د معاصر ادب د رامنځته کېدو د لارو چارو د پيلامې او ادامې په اړوند د ټولو ادبي هلو ځلو تاريخي بهير شامل دی.

دغه ادبي پړاو له هغه وخت او مهال سره سمون خوري چې پښتون ولس له نوي عصري ژوند سره آشنا او له نويو عصري مشکلاتو او ربړو سره لاس په ګرېوان شوی دی.

موږ وينو چې پښتو اديبانو د خپلو ځانګړو احساساتو او غوښتنو له تنګې دايرې څخه دباندې د قدم ايښودلو هڅه او لټه کړې او د خپل ټول ملت، هېواد او ان دا چې د



نړۍ او بشريت په هکله يې فکر کړی او د وخت اساسي غوښتنې د ادب موضوعات گرځېدلي دي.

د دغه پړاو په نوميالیو ليکوالو او شاعرانو کې د نور محمد نوري افغاني (د غنچه روه ليکوال) ملا فيض محمد اخونزاد (د روضة المجاهدين ناظم) ملاعبدالباقي کندهاري (د تبيين الواجبات ناظم) مولوي احمد (د آدم خان درخانی، گنج پښتو ليکوال) ميا حسيب گل کاکاخيل (د نقش نگين ناول ژباړن)، ميا محمد يوسف کاکاخيل (د توبة النصوح ناول ژباړن) قاضي ميراحمد شاه رضواني (د بهارستان افغاني او شکرستان افغاني ليکوال او مدون) او نورو نومونه د بېلگې په توگه يادولی شو.

دويم پړاو:

د پښتو ادبياتو تاريخ (معاصره دوره) ليکوال کانديد اکاډيمسن محمد صديق روهي دې پړاو ته د روښانتيا پړاو ويلی دی.

موږ د دغه پړاو د پښتو ادبياتو د ودې او پرمختيا د بهير څرنگوالی په دوو برخو کې مطالعه کوو:

الف_ په سراجيه عصر کې د پښتو ادب وده او پرمختيا (۱۹۰۱م. _ ۱۹۱۹م.):

اميرعبدالرحمان خان په ۱۹۰۱م. کال ومړ او پر ځای يې زوی حبيب الله خان د واک پر گدۍ کښېناست. نوموړی چې د پلار پر خلاف د نرم طبيعت خاوند او د سوکاله ژوند پلوی و، واک ته د رسېدو په لومړيو کې يې هغو کسانو ته چې د ده د پلار د واکمنی پر مهال د هغه د استبدادي چار چلند له مخې له هېواد نه بهر او دننه په هېواد کې له يوې سيمې نه بلې ته کوچېدلي او فرار شوي وو، د عفوې اعلان وکړ.

له دې امله زيات شمېر نوميالي شخصيتونه، لکه محمود طرزي، غلام محی الدين افغان او نور له هېواد او خلکو سره د ژورې مينې په احساس او ملي روحيه له نويو



مترقي افکارو سره یو ځای خپل هېواد ته د خدمت په هیله کابل ته راغلل. هغوی ته په ټولنیزو، سیاسي او دولتي چارو کې د خدمت او سیاسي فرهنګي هلو ځلو موقع په لاس ورغله او دغسې په هېوادکې د روښانفکری زړی رزغون او د هر اړخیزې ټولنیزې پرمختیا لپاره لارې چارې برابرې شوې. سراج الاخبار جریده رامنځته او په کې پښتو ته ځای ورکړل شو، همدارنګه د حبیبې نوی عصري ښوونځي تاسیس او پښتو په کې د یو مضمون په توګه تدریس کېدله. د دې دورې نومیالي لیکوال: عبدالهادي داوي، غلام محی الدین افغان، مولوي صالح محمد او نور دي.

ب_ په اماني عصر کې د پښتو ادب وده او پراختیا:

په اماني دوره (۱۲۹۸ش. _ ۱۳۰۷ش.) کې د پښتو ژبې د ودې او پرمختیا لپاره حکومت لازمه، پاملرنه وکړه. سربېره پر دې چې په معارف کې یې د تدریس او په مطبوعاتو کې د خپرېدو ونډه زیاته شوه، د هېواد لومړنی اساسي قانون هم په پښتو ولیکل شو.

امان الله خان دا احساس کړې وه، چې د یو ملت ژوند بې د ملي ژبې له درلودلو ناممکن دی، نو هڅه یې وکړه چې پښتو ژبې ته په رسمي توګه ملي حیثیت ورکړي. د همدې هڅو په لړ کې یې د پوهنې وزارت په چوکاټ کې د پښتو ژبې د پالنې او روزنې یو مرکز جوړ کړ، دې مرکز ته یې ((مرکه د پښتو)) نوم کېښود.

په همدغه وخت کې په پښتونخوا کې د خان عبدالغفار خان په مشرۍ د ((انجمن اصلاح الافاغنه)) په نوم یو مرکز جوړ شو، چې په خپل وخت کې یې د پښتو ادب په وده کې د یادونې وړ ونډه درلوده. په همدغه وختونو کې په پښتونخوا کې د پښتو د هنري نثر د ودې او پرمختیا لپاره لارې چارې برابرې او ډېر نومیالي لیکوال رامنځته شول، لکه: سید راحت زاخیلي، حمزه شینواری، عبدالاکبر خان اکبر، ماسترعبدالکریم او نور.

دریم پړاو:

له کورني اړدور نه و روسته د پښتو ادب وده او پرمختیا:

په هېواد کې د کورني اړو دوړ (۱۳۰۷ ـ ۱۳۰۸لمریز) نه راوروسته د محمد نادر خان د واکمنۍ په مهال (۱۳۱۰لمریز) په کابل کې ((ادبي انجمن)) او په ۱۳۱۱لمریزکال په کندهار کې د ((پښتو ادبي انجمن)) جوړ شو. کابل ادبي انجمن د ((کابل)) په نامه او کندهار ادبي انجمن د ((پښتو)) په نامه مجله خپرو له. وروسته دا دواړه انجمنونه یو ځای شول او پر ۱۳۱۶لمریزکال ورځخه ((پښتو ټولنه)) جوړه شوه. دغې علمي ادبي ټولنې د پښتو ژبې په وده او پرمختیا او د لیکوالو په روزنه کې ډېره ارزښتمنه ونډه درلوده. د دې دورې په نومیالیو ادیبانو کې د عبدالحی حبیبي، قیام الدین خادم، گل پاچا الفت، عبدالرحمان پژواک، عبدالرؤوف بېنوا، صدیق الله رښتین او نورو نومونه د بېلگې په توگه یادولی شو.

د روانې لمریزې پېړۍ په دربمه لسیزه (۱۳۲۴لمریز کال) کې د وېښ زلمیانو د سیاسي ډلې او وروسته د شامحمود خان د صدارت د دورې دموکراسۍ او بیا وروسته د ۱۳۴۳ لمریز کال د نوي اساسي قانون په رڼا کې رامنځته شوې دموکراسۍ آزادو مطبوعاتو ته لاره برابره کړه، چې د پښتو ژبې د ادبیاتو د ایجاد او ودې پر بهیر یې ډېره ارزښتمنه اغېزه لرلې ده. وروسته بیا د محمد داؤد خان جمهوري نظام رامنځته کېدل (۱۳۵۲لمریز) او بیا د وروستیو پېښو دې هرې یوې د پښتو ادب په پرمختیایي بهیر د کتنې وړ اغېزې لرلې دي. زیات لیکوالان او شاعران رامنځته شوي او د منثور او منظوم ادب د بېلا بېلو ډولونو په لیکلو کې یې پوره او کره تجربې کړې دي.

اوس د پښتو ادب پرمختیایي بهیر په لازم گړندیتوب سره پرمخ روان دی. پښتو چاپي او غږیزو رسنیو کې په ملي او نړیواله پراخه کچه خپرونې لري. په افغانستان، پښتونخوا او د نړۍ په نورو هېوادونو کې زیاتې دولتي او آزادې فرهنگي ادارې د پښتو ژبې د ودې او پرمختیا لپاره کار کوي. زیات شمېر لیکوال او شاعران په خپلو ادبي او فرهنگي فعالیتونو بوخت، پښتو ژبه او ادب د پرمختیا په حال کې دی.



د متن لنډيز:

د پښتو ادب معاصره دوره د نولسمې میلادي پېړۍ له او ومې لسيزې څخه راپېل او تر ننه پورې رارسېږي. دا ادبي دوره په بېلا بېلو پړاو ونو وېشل شوې ده: لومړی پړاو د نولسمې عيسوي پېړۍ له اويايمو کلونو څخه پيل او د امير حبيب الله خان د واکمنۍ تر پيلامې (۱۹۰۱م.) پورې رارسېږي. دا هغه مهال دی چې پښتون ولس له نوي عصري ژوند سره آشنا او له عصري مشکلاتو سره لاس په گرېوان شوی دی. همدغه د معاصرو نويو هنري ادبي نثرونو او معاصر شعر د راڅرگندېدو زمانه ده.

دويم پړاو، چې د امير حبيب الله د واکمنۍ له زماني څخه پيل کېږي او بيا وروسته د اماني دوره ده، چې هېواد او خلک پکې له خپلواک ژوند څخه برخمن کېږي. په دې دوره کې په سراج الاخبار کې د پښتو خپرېدل او په حبيبيه ښوونځي کې د پښتو مضمون تدريس کېدل د پښتو د ودې او پرمختيا په لاره کې لوی گام دی.

وروسته بيا په اماني دوره کې د پښتو مرکې رامنځته کېدل، په پښتونخوا کې د خدايي خدمتگاري تحريک يا انجمن اصلاح افاغنه رامنځته کېدل د پښتو ادبياتو د دوې لپاره لارې چارې برابروي او دا ادب د پرمختگ لپاره يو ارزښتمن گام دی. همدارنگه د وېښ زلميانو غورځنگ، د شاه محمود خان د صدراعظمې دورې دموکراسي او بيا وروسته د دموکراسۍ لسيزې آزادې خپرونې او د محمد داؤد خان د جمهوريت کلونه ټول د پښتو ژبې د ادبياتو د ودې او پرمختيا په لاره کې د يادونې وړ پړاوونه دي.

## فعاليتونه

۱ـ زده کوونکي دې د ښوونکي له متن لوستنې او لازمو څرگندونو وروسته د متن يو يو پراگراف په نوبت ولولي. ښوونکی دې له هغوی سره د اړتيا پر مهال لازمه مرسته وکړي.

۲ـ زده کوونکي دې په درې ډلو ووېشل شي او دې ته وګومارل شي چې متن په چوپه خوله په غور او دقت سره ولولي. لومړۍ ډله دې په متن د راغلو لیکوالو نومونه، دویمه ډله دې د کتابونو نومونه او دریمه ډله دې د علمي، فرهنګي او تعلیمي مرکزونو او ادارو نومونه لست کړي. د هرې ډلې استازی دې د خپلې ډلې لست کړي نومونه د نورو ټولګیوالو په وړاندې ولولي.

۳ـ ښوونکی دې د نومونو، کتابونو او فرهنګي ټولنو (انجمنونو) لستونه تر بشپړولو وروسته د تختې پر مخ ولیکي. زده کوونکي دې هغه په خپلو کتابچو کې ولیکي او د ځینو په باب دې له ښوونکي څخه لازم توضیحات او څرګندونې وغواړي.

۴ـ زده کوونکي دې په نوبت سره د ټولګي مخې ته وربلل شي، چې د لوست مفهوم په خپلو الفاظو کې نورو ټولګیوالو ته ووایي.

۵ـ په دې لاندې پوښتنو دې د لوست ارزونه وشي:

ـ ادبي تاریخ څه ته وایي؟

ـ پښتو معاصره ادبي دوره کله پیل شوې ده؟

ـ د پښتو د معاصرې ادبي دورې د لومړي پړاو د څو لیکوالانو نومونه واخلئ.

ـ د پښتو د معاصرې ادبي دورې د لیکوالو د څو آثارو نومونه واخلئ.

ـ پښتو ژبه کله، د کوم واکمن په وخت کې په اخبار او ښوونځي کې د یو مضمون په توګه شامله شوه؟

ـ د پښتو د معاصرې ادبي دورې د دویم پړاو د څو لیکوالو نومونه واخلئ.

ـ پښتو ټولنه څه وخت او څنګه منځته راغله؟




زده کوونکي دې د کورنۍ دندې په توګه په متن کې د کوم راغلي لیکوال یا د هغه د کوم اثر او یا یوې ادبي ټولنې لنډه معرفي ولیکي او په راتلونکي پښتو لوست درسي ساعت کې دې هغه نورو ټولګیوالو ته ولولي.

# گلدسته




ـ تاسې دمخه د گلدستې په نوم د کوم کتاب نوم اورېدلی؟
ـ د پښتو په کلاسیکو شاعرانو کې د عبدالقادر خان خټک په نوم کوم شاعر پېژنئ؟
ـ د سعدي د مشهور اثر گلستان له نامه سره آشنا او هغه مو لوستی دی؟

پښتو ژبې او ادب ته خوشحال خان خټک او د هغه د کورنۍ غړو ډېر د قدر وړ خدمتونه کړي دي، عبدالقادر خان خټک د خوشحال خان خټک زوی و، چې د دري ژبې پیاوړی شاعر شیخ سعدي مشهور اثر گلستان یې پښتو ته په خواږه ادبي نثر او نظم راژباړلی او ((گلدسته)) نوم یې پرې ایښی دی. په دې لوست کې دغه اثر درپېژنو.

د پښتو ژبې نوميالي شاعر عبدالقادر خان خټک (۱۰۶۳ ـ ۱۱۲۵هـ.ق.) د دري ژبې د پياوړي ليکوال او شاعر شيخ سعدي (۵۸۱ هـ.ق. ـ ۶۹۱ يا ۶۹۴هـ.ق.) مشهور اثر ((گلستان)) پښتو ته راژباړلی او ((گلدسته)) يې نومولی دی. پر دغه اثر د عبدالقادر خان خټک له ليکلې ديباچې (سريزې) څخه جوتېږي چې د کتاب ژباړه يې په نوښار کې د خپلې استوګنې پر مهال د ۱۱۲۴هـ.ق. کال د رجب په مياشت کې پيل کړې او د همدغه کال د روژې د مياشتې په ۲۴ نېټه يې پای ته رسولې ده.

گلستان چې په دري ادب کې پر اخلاقي، تعليمي او نورو عامو ټولنيزو معنوي ارزښتونو او ښېګڼو سربېره د ژبني فصاحت او بلاغت ډېره غوره بېلګه ده او له پېړيو پېړيو راهيسې د سيمې په هېوادونو کې په کورو، جوماتونو، مدرسو، ښوونځيو او پوهنځيو کې لوستل کېږي او خلک يې له لوستلو څخه پند او خوند اخلي. دغه اثر د سيمې د نورو هېوادونو په څېر د افغانستان او پښتونخوا په جوماتونو او مدرسو کې هم تدريس کېده او عبدالقادر خان خټک، چې د خپل وخت يو پياوړی ديني عالم او علمي ـ فرهنګي شخصيت و، د خپلې سيمې خلکو ته يې د ديني او ادبي علومو د تدريس چارې سرته رسولې، کله چې د دغه اثر پر مفاهيمو ورته د پښتنو پوهېدنه لږ و ډېر ستونزمنه ښکاره شوې، نو ځکه يې د گلستان د ژباړنې هوډ او تکل کړی. دې مطلب ته يې د گلدستې په سريزه کې داسې اشاره کړې ده:

((بعضې دوستانو راڅخه گلستان کتاب لوست، ډېر به يې راته ويل چې د عربي، د فارسي کتابونه ډېر دي، اما پښتو ژبه کې کتابونه د پښتو نشته. ستا قوت د تصنيف د ترجمې البته شته، که تصديعه په ځان قبوله کړې، گلستان چې مطبوع او مرغوب د خاصو عامو دی، هم يې لوی سرې گوري نصيحت ترې اخلي، هم يې هلکان لولي برکت ترې اخلي ... اکثر خلق يې متن لولي، دويم ځل يې معنا، که په پښتو ژبه ترجمه شي، پښتنو ته به اسان شي، فايده په يې لويو، هلکو ته ورسي... .))

همدغو ښوونيز و روزنيز او نورو اخلاقي او معنوي ارزښتونو ته په کتنه عبدالقادر خان خټک دغه اثر پښتو ته راژباړلی دی. د گلدستې په سريزه کې د ژباړن له دې لاندې



ځلوريزې ځرګندېږي چې د ګلستان ځینې حکایتونه، چې ژباړن هغه د پښتني ټولنې له اخلاقي، معنوي او کلتوري ارزښتونو سره په سمون کې نه دي لیدلي، نو له ژباړې یې تېر شوی دی.

زر سـل ځـلـيـريـشـت د سـن کـلـونـه
لـه ګـلـسـتـانـه چـې دا ګـلـونـه
ټـول شـو و تـرې جـوړه چـې ګـلـدسـتـه شـوه
يـادګـار بـه پـاتـې مـونـږه بـه ځـونـه

عبدالقادر خان خټک دګلستان ټول څوارلس حکایتونه او اته ویشت حکمتونه نه دي ژباړلي. د ګلستان د سریزې (دیباچه) په ژباړه کې یې هم لږ و ډېر تصرف کړی او په هغو ځایونو کې چې شیخ سعدي د خپلې زمانې د واکمنانو او حکمرانانو ستاینې کړې، ژباړن د هغو پر ځای د خپلې کورنۍ د مشرانو او په ځانګړې توګه د خپل نومیالي، فرهنګیالي او توربالي پلار خوشحال خان د ژوند حالات بیان کړي او د هغه ستاینې یې کړې دي او دا یې هم ویلي دي دا کار یې ځکه کړی چې د ده د زمانې واکمنان عادلان نه دي.

د عبدالقادر خان خټک د دغه ارزښتناک ژباړلي اثر قلمي نسخې ډېرې موندل کېږي، چې د هغو له مخې یې د لومړي ځل لپاره ځینې برخې جارج راورټي (۱۸۲۵ ـ ۱۹۰۶م.) په خپل اثر ((ګلشن روه)) او بیا میراحمد شاه رضواني په ((شکرستان افغاني)) کې خپرې کړي دي. وروسته په ۱۹۶۱م. کال دګلدستې بشپړ متن د ډاکټر عظیم شاه خیال بخاري له مفصلې سریزې، تحشیې او تعلیقاتو سره د پېښور پښتو اکېډمي له خوا چاپ شو. په ۱۳۸۳لمریز کال د افغانستان د علومو اکاډمي د پښتو څېړنو نړیوال مرکز هم دګلدستې متن چاپ او خپور کړی دی.

د عبدالقادر خان خټک دګلدستې متن پر یوې دیباچې (سریزې) سربېره دا لاندې اته بابونه لري:



اول باب: په بیان د خوی خصلت د بادشاهانو.
دویم باب: په بیان د خوی خصلت د درویشانو.
دریم باب: په بیان د قناعت.
څلورم باب: په بیان د خاموشی.
پنځم باب: په بیان د عشق او ځوانی.
شپږم باب: په بیان د ضعف د پیری.
اووم باب: په بیان د تاثیر د تربیت.
اتم باب: په بیان د اَدابونو د صحبت.

د متن اووه بابونه په بېلا بېلو حکایتونو او اتم باب په حکمتونو وېشل شوی او تر هر سرلیک لاندې په نثر او نظم ډېرې په زړه پورې پېښې او مطالب په ډېره خوږه او رنګینه ژبه بیان شوي، چې د پند او خوند دواړه ښېګنې په کې نغښتې دي.
لنډه دا چې عبدالقادر خان خټک د سعدي د شاهکار اثر ((ګلستان)) ژباړه له ټولو لفظي، معنوي، ادبي ظرافتونو او نزاکتونو سره نثر په نثر او نظم په نظم په ډېره خوږه روانه ادبي ژبه په داسې په زړه پورې انداز کې کړې چې موږ ته د نوموړي د لوړ علمي او ادبي استعداد ډېره ښه پېژندویې او څرګندویې کولای شي.
دلته یې یو حکایت د متن د بېلګې په توګه لولو:

## حکایت

یو حکیم زوی ته پند وایه چې ای زویه! سعی د هنر په زده کولو بویه، چې ملک دولت د دنیا اعتماد لره نه ښایي. زر په محل د خطر دی، که یې غل درځخه یوسي، که ظالم یې درځنې په رټا یوسي، که موافق یې د مراد وخوري، زر به درځخه تمام سي، اما هنر چینه ده زاینده او دولت دی پاینده، که هنر مند له دولته پریوځي، هم یې غم نشته، چې هنر خود بنفسه دولت دی. هنرمند هر چېرته په قدر په منزلت دی او بې هنر چې له مسنده




پرېوځي، هر چېرې چې درومي آرزومند د يو لقمې گرځي، هم يې په خوارۍ مومي.

**قطعه**

نـــاگـــاه پـرېـوتـه فـتـنـه د شـــام پــه مـلـک کې
واړه خـلـق يـې هـر لـــوري تــه پـرېـشـــان شـه
روســتـــايــي چـې آراســتـــه پــه فـضـيـلـت و
مــقـــرب د هـغـه مـلـــک د ســلــطـــان شــه
چـــې يـــې عــلـم هـنــر نـــه وه کـــه اشـــراف و
پـــه جـلـــو کـــې د کـــم ذات ســـرې روان شـه
(گلدسته، ۳۲۳، ۳۲۴ مخونه)

عبدالقادر خان خټک د خوشحال خان زوی دی. په ۱۰۶۳ هجري قمري کال زېږېدلی. يو عالم، عارف، پياوړی شاعر او ليکوال و. د نظم او نثر ډېر کتابونه يې ليکلي دي، چې دلته يې د بېلگې په توگه د شعرونو ديوان (حديقه خټک)، يوسف زليخا، څلوېښت حديثونه او قصيده برده نومونه يادوو.
د عبدالقادر خان خټک ژوند تر ۱۱۲۵هـ.ق. کال پورې باوري دی.

د متن لنډيز:
د شيخ سعدي گلستان عبدالقادر خان خټک پښتو ته راژباړلی او پر هغه يې د گلدسته نوم ايښی دی. د دې کتاب د ژباړې کال ۱۱۲۴ هـ.ق. دی.
دکتاب نظم پر نظم او نثر پر نثر په ډېره خوږه ادبي ژبه ژباړل شوی. د دې اثر قلمي نسخې زياتې موندل کېږي. لومړی ځل په ۱۹۶۱م. کال د پېښور پښتو اکاډمي له خوا د ډاکټر عظيم شاه خيال بخاري په سريزه او تعليقاتو چاپ او خپور شوی او په ۱۳۸۳ لمريز کال د افغانستان د علومو اکاډمي هم چاپ کړی دی.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په چوپه خوله ولولي، ستونزمنې کلمې یا لغتونه دې په نښه او لست کړي او بیا دې هر زده کوونکی هغه لست کړې کلمې د ټولګیوالو په وړاندې ولولي.

۲ـ ښوونکی دې زده کوونکي وګوماري چې متن په چوپه خوله ولولي او په هغه کې صفتونه پیدا کړي. هر زده کوونکی دې د صفت د کلمو جوړ کړی لست ټولګیوالو ته ولولي. ښوونکی دې هغه توحید او بشپړ کړی لست دې د تختې پر مخ ولیکي.

**صفت**: صفت یا ستاینوم په خپلواک ډول څه نه نوموي، خو د یو څه حالت څرنګوالی ښیي، یعنې دا چې صفت د نوم معنا ښه څرګنده، محدوده او روښانوي، لکه: روغ، ناروغ، ښکلی، بدرنګ، پیاوړی، کمزوری، تور، سپین.

۳ـ زده کوونکي دې په نوبت سره پاڅېږي او د لوست مفهوم دې ووایي.

۴ـ په دې لاندې پوښتنو دې د لوست د زده کړې دکچې ارزونه وشي:

- ګلدسته د چا اثر او له کوم کتاب څخه ژباړل شوی دی؟
- په ګلدسته کې څه ډول مطالب راغلي دي؟
- عبدالقادر خان خټک ولې د سعدي ګلستان پښتو ته د ګلدستې په نوم راوژباړه؟
- عبدالقادر خان خټک څوک و او کوم آثار یې لیکلي دي؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د ګلدستې د حکایت د مفهوم په اړه څو کرښې ولیکي او د پښتو لوست په راتلونکي ساعت کې دې هغه نورو ټولګیوالو ته واوروي.



# علامه پوهاند عبدالحی حبیبي



ــ د پښتو په معاصرو شاعرانو او لیکوالو کې د چا له نامه او آثارو سره آشنا یاست؟

ــ د پوهاند حبیبي نوم مو دمخه اورېدلی او د هغه کوم اثر مو لیدلی یا لوستی دی؟

د پښتو ادب په معاصره دوره کې ډېر نومیالي لیکوال او شاعران لرو، چې د خپل ژوند زیاته برخه یې ژبې او ادب ته په خدمت تېره کړې او ډېر ارزښتناک آثار یې لیکلي دي. په دغو نومیالیو ادبي فرهنګي څېرو کې یو هم پوهاند عبدالحی حبیبي

دی، چې په دې لوست کې يې درپېژنو.

د هېواد نوميالی عالم، تاريخ ليکونکی او اديب (ليکوال او شاعر) پوهاند عبدالحی حبيبي پر ۱۲۸۹لمريز کال د کندهار د باميزايي د محلې په يوه عالمه او فاضله کورنۍ کې زېږېدلی و. پلار يې ملا عبدالحق د خپل وخت نامتو عالم او فاضل شخصيت و.

استاد حبيبي پر ۱۲۹۹لمريز کال د کندهار د شالمار په لومړني ښوونځي کې شامل او تر څنګ يې د دوديزو ديني او ادبي علومو زده کړه د خپلې سيمې له پياوړو عالمانو څخه پيل کړه. پر ۱۳۰۴ لمريز کال چې له نوموړي ښوونځي څخه فارغ شو، په همدغه ښوونځي کې د ښوونکي په توګه وګومارل شو.

استاد دغلته د ښوونکي د سپېڅلې دندې ترڅنګ د ديني او عصري علومو خصوصي زده کړې او مطالعې ته دوام ورکړ. فقه، حديث، تفسير، منطق، صرف، نحو، فصاحت، بلاغت او د خپل هېواد او نړۍ د پخوانيو شاعرانو او ليکوالو د نظم او نثر ډېر کتابونه يې ولوستل.

د ښوونکي په توګه له دوه کاله دندې سرته رسولو وروسته له مطبوعاتو سره د ځانګړې علاقې له مخې په کندهار کې د خپرېدونکي اخبار ((طلوع افغان)) مرستيال شو. څلور کاله يې دغه دنده په ډېر برياليتوب ترسره کړه او پر ۱۳۱۰لمريز کال د طلوع افغان د اوونيزې مسؤول مدير شو. استاد د همدغه ژورنالستيکي دندې ترڅنګ په پرله پسې توګه مطالعې، علمي، تاريخي، ادبي او څېړنيزو ليکنو ته دوام ورکړ او د يو منلي او وتلي ليکوال په توګه له لوړ نوم او شهرت څخه برخمن شو. پر ۱۳۱۹لمريز کال د هېواد پلازمېنې (کابل) ته راوغوښتل شو او د سترې علمي ـ فرهنګي مؤسسې ((پښتو ټولنې)) لوی مدير مقرر شو. همدغه مهال ورته د دغه سترې علمي دندې ترڅنګ د مطبوعاتو د مستقل رياست د مرستيالۍ چارې هم وروسپارل شوې. يو کال وروسته د پوهنې وزارت د مشاور دنده وروسپارل شوه او درې کاله يې دغلته خپلې دندې ته دوام ورکړ. کله چې پر ۱۳۲۳لمريز کال په کابل پوهنتون کې د ادبياتو پوهنځی تاسيس شو،



نو د دغه پوهنځي د رياست او د ادبياتو د تاريخ د تدريس چارې ورو سپارل شوې. په ۱۳۲۷لمريز کال په ملي شورا کې د کندهار د خلکو د وکيل په توګه وټاکل شو. درې کاله يې دغه سپېڅلې دنده ترسره کړه او پر ۱۳۳۰لمريز کال د هېواد پالنې د لوړ احساس او تړولنيزې آزادۍ غوښتنې د سياسي مبارزې په سبب د وخت حکومت له خوا جبراً د خپل هېواد پرېښودو ته اړ کړای شو. لومړی پښتونخوا ته لاړ، څه موده يې په پېښور کې تېره کړه. هلته يې د ((آزاد افغانستان)) په نوم يوه جريده خپروله. وروسته بيا د ځينو سياسي ملحوظاتو له مخې له پېښور څخه وتلو ته اړ شو. کراچۍ ته لاړ او هلته په علمي او ادبي فعاليتونو بوخت شو. دغسې يې لږو ډېر لس کاله په جلا وطنۍ کې تېر کړل. پر ۱۳۴۰لمريز کال ورته دا لارې چارې برابرې شوې چې خپل هېواد ته راشي او د پخوا په څېر د علمي او فرهنګي چارو په سرته رسولو بوخت شي.

هېواد ته له راستنېدو يو کال وروسته د کابل پوهنتون د ادبياتو په پوهنځي کې استاد شو او پر ۱۳۴۴لمريز کال يې د خپلو زيات شمېر علمي، ادبي او تاريخي ليکلو آثارو په وړاندې کولو سره په کابل پوهنتون کې د پوهاندۍ علمي رتبه ترلاسه کړه.

وروسته بيا په ۱۳۴۵لمريز کال د تاريخ ټولنې د رياست چارې ورو سپارلې او بيا پر ۱۳۵۱لمريز کال د صدراعظم فرهنګي مشاور شو.

استاد د خپل عمر په وروستۍ لسيزه کې، چې له رسمي دولتي دندې څخه يې تقاعد هم کړی و، د کابل پوهنتون د ادبياتو په پوهنځي کې استاد، د اطلاعاتو او کلتور د وزارت مشاور، د افغانستان د علومو اکاډمي غړی او ترڅنګ يې په خپلو علمي، تاريخي او ادبي څېړنيزو چارو بوخت و. بالاخره د هېواد دغه پياوړی تاريخ ليکونکی، منلی اديب، د علم او فرهنګ رښتينی خدمتګار د ۱۳۶۳لمريز کال د ثور د مياشتې په شلمه نېټه وفات او د کابل په شهدای صالحين هديره کې خاورو ته وسپارل شو.

پوهاند عبدالحی حبيبي نږدې شپږ لسيزې د هېواد په علمي او فرهنګي ادارو کې ارزښتمن فرهنګي خدمتونه کړي دي. په دغه موده کې يې ډېرې علمي، ادبي، تاريخي،

جغرافیوي او کلتوري څېړنې کړې، چې ځینې یې د ځانګړو کتابونو په بڼه او زیات شمېر یې د مقالو په شکل د هېواد دننه او بهر د خپرونو له لارې خپرې شوې دي. په ډېرو ملي او نړیوالو علمي، ادبي، تاریخي غونډو او سیمینارو کې یې فعاله ونډه اخیستې. د هېواد د علمي، فرهنګي ادارو او ټولنو په جوړېدو، ودې او پرمختګ کې یې اغېز ناکه برخه لرلې ده. زیات شمېر لیکوال، شاعران، د ادب او تاریخ څېړونکي یې په مستقیمه لاربنوونه، هڅونه او پاملرنه او یا هم د دوی د آثارو او افکارو په لوستلو روزل شوي دي.

استاد پر خپلې مورنۍ ژبې پښتو سربېره پر دري، عربي، انګلیسي، اردو ژبو ښه پوهېده، ژباړې او ان دا چې په ځینو یې لیکنې هم کولای شوې.

استاد حبیبي شاعر هم و. په پښتو او دري ژبو یې د شعرونو چاپ شوې بېلګې او ټولګې شته، د ادبي هنري نثرونو پیاوړی لیکوال هم و، ډېرې ادبي ټوټې، کیسې او نور ادبي نثري ډولونه یې لیکلي او چاپ شوې دي، خو زیاته پاملرنه یې علمي، ادبي، تاریخي څېړنیزو لیکنو ته وه. د ټولو چاپ شویو کتابونو شمېر یې د ۱۲۰ شاوخوا ښودل شوی دی او چاپ شوې مقالې یې تر زرو زیاتې دي، چې هره یوه یې په خپل ځای زیات علمي، ادبي او تاریخي ارزښت لري. موږ یې دلته د بېلګې په توګه د څو کتابونو نومونه اخلو:

د پښتو ادبیاتو تاریخ (لومړی ـ دویم ټوک) تاریخ افغانستان بعد از اسلام (لومړی ټوک) پښتانه شعراء (لومړی ټوک) تاریخ مختصر افغانستان، تاریخ افغانستان در عصر تیموریان، نوموړکي مؤرخین، پښتو نثر ته کره کتنې، د پښتو د نوی ادب لارې، د افغانستان پېښلیک (لومړی ټوک)، تاریخ خط و نوشته های کهن افغانستان، د پښتو ادبیاتو لنډ تاریخ، نسب و زادګاه سید جمال الدین افغان، د پښتو ادب په تاریخ کې قصیده، روابط ادبي سند با افغانستان، رهنمای تاریخ افغانستان او ... .



د متن لنډیز:

پوهاند عبدالحی حبیبي د ملا عبدالحق زوی، ۱۲۸۹ لمریز کال د کندهار ښار په بامیزو کې زېږېدلی و، پیاوړی عالم، لیکوال، شاعر او تاریخ لیکونکی و. د خپل ژوند شپې لسیزې یې هېواد ته په علمي، ادبي او فرهنګي ډګر کې د ستاینې وړ خدمتونه کړي، د ۱۲۰ په شاوخوا کې چاپ شوي آثار او د هېواد په مطبوعاتو کې یې تر زرو زیاتې علمي، ادبي، تاریخي او نورې ډول ډول څېړنیزې مقالې خپرې شوې دي. د ۱۳۶۳ لمریز کال د ثور په شلمه نېټه په کابل کې وفات او په شهدای صالحین هدیره کې خاورو ته سپارل شوی دی.




۱ـ زده کوونکي دې په خپل وار د متن یو یو پراګراف ولولي.

۲ـ ښوونکی دې د اړتیا پر مهال له زده کوونکو سره مرسته وکړي.

۳ـ زده کوونکي دې وګومارل شي چې متن په ډېر غور او دقت سره ولولي، هغه کلمې (لغتونه) دې لست کړي، چې پر معنا او مفهوم یې نه پوهېږي.

۴ـ زده کوونکي دې خپل لست کړې کلمې په نوبت سره د ټولګي په وړاندې ولولي. ښوونکی دې د زده کوونکو ټولو لوستل شویو کلمو توحیدي لست جوړ او هغه دې د تختې پر مخ ولیکي.

۵ـ د تختې پر مخ هغه لیکل شوې کلمې، چې ځینې نور زده کوونکي یې معنا کولای شي، د هغو په مرسته دې معناوې پر تخته ولیکي او هغه کلمې چې معنا کول یې د زده کوونکو له توانه پوره نه وي د هغو معنا دې په خپله د کلمو ترڅنګ پر تخته ولیکي. زده

کوونکي دې هغه کلمې له معناګانو سره په خپلو کتابچو کې وليکي.

۶ـ ښوونکی دې زده کوونکي يو يو د ټولګي مخې ته راولي، چې د پوهاند عبدالحی حبيبي په اړه زده کړي معلومات نورو ټولګيوالو ته ووايي. ښوونکی دې د زده کوونکو د ناسمو معلوماتو د بشپړولو او کره کولو په برخه کې له هغوی سره لازمه مرسته وکړي.

۷ـ په دې لاندې پوښتنو دې د لوست د زده کړې د کچې ارزونه وشي:

- پوهاند عبدالحی حبيبي د چا زوی او چېرې زېږېدلی دی؟
- پوهاند عبدالحی حبيبي د هېواد په فرهنګي ډګر کې کوم خدمتونه کړي دي؟
- پوهاند عبدالحی حبيبي څه وخت او ولې له هېواد نه وتلو ته اړ شو؟
- څوک د پوهاند عبدالحی حبيبي د پنځو آثارو نومونه اخيستلی شي؟




زده کوونکي دې د کورنۍ دندې په توګه د پښتو د کوم بل معاصر شاعر يا ليکوال په هکله خپل معلومات وليکي او يا دې د پوهاند حبيبي کوم ليکلی اثر پيدا او هغه دې معرفي کړي، د راتلونکي پښتو لوست په ساعت کې دې خپل ليکلي معلومات نورو ته واوروي.

> نيکمرغه هغه څوک دی چې له خپلې هرې خطا څخه نوې تجربه تر لاسه کړي.
> ((سقراط))

نهم لوست

# هوایي ډګر ته د ورتلو او په الوتکه کې د سفر کولو لارښوونه
## (خبرې اترې)



ـ کله مو په الوتکه کې د هېواد دننه یا بهر سفر کړی دی؟

ـ کله هوایي ډګر ته تللي یاست؟

ـ مسافر په الوتکه کې له سپرېدو دمخه په هوایي ډګر کې کوم مراحل تېروي؟

کله کله د ژوند په بهیر کې دې ته اړ کېږو چې دننه په هېواد کې له یو ولایت څخه بل ته او کله هم له یو هېواد نه بل ته په الوتکه کې سفر وکړو. په الوتکه کې له سفر کولو دمخه باید په هوایي ډګر کې ځینې مراحل تېر کړو. په دغه اصولو او لارو چارو پوهېدنه ضروري ده. په دې اړه مو یو لړ خبرې اترې ترتیب کړي، چې هم زده کوونکو ته دغه لارې چارې وربښيي او هم ورسره د پښتو ژبې د خبرو اترو په زده کړې کې مرسته کوي، په دې لوست کې یې لولو.

نجیبه: ګلالۍ ودرېږه، دلته هوايي ډګر ته د ننوتلو لومړنۍ دروازه ده.

ګلالۍ: ښه سمه ده، راځه چې ورننوځو.

نجیبه: په ننوتو خو ننوځو، داګوره دلته دا ټول خلک ولاړ دي، موږ هم باید ودرېږو.

ګلالۍ: نو دا خلک ولې دننه نه ځي، ولې ولاړ دي؟

نجیبه: داګوره په هغه لوحه یې لیکلي تالاشي او پلټنه، دلته خلک پلټل کېږي.

ګلالۍ: هو ولا هاغه ګوره نجیبې هاغلته پولیس ولاړ دي، خلک هم پلټي، بکسونه یې هم.

نجیبه: هلته ګوره نارینه پولیس نارینه ګوري او ښځې پولیسې ښځې تالاشي کوي.

ګلالۍ: ښونه ښه! زه خو سخته وېرېدلې وم، چې نارینه به مو تالاشي کوي.

نجیبه: هر ځای کې دومره ژروار او پار مه خطاکوه، هله ژر شه دا بکسونه دراخوا که چې زما او ستا د تالاشۍ نوبت دی.

ګلالۍ: دا دی نږدې مې کړل.

پولیسه: تاسو چېرته ځئ، پاسپورت او ټکټونه مو وښیئ.

نجیبه: موږ هرات ته ځو، پاسپورت نه لرو او دا هم د آریانا افغان هوايي شرکت ټکټونه.

پولیسه: سمه ده، ټکټونه مو بېرته واخلئ، دا بیکونه مو پرانېزئ.

ګلالۍ: دا دې خورې کشکونه یې پرانستې دي.

پولیسه: (بیکونه تالاشي کوي) بکسونه مو واخلئ، ځئ دننه لاړې شئ.

نجیبه: کور دې ودان، دا دی اخلو یې واخله ګلالۍ بیک دې.

ګلالۍ: ځه چې ځو، هو نجیبې دلته ښومره ډېرې موټرې او ټیکسي ولاړ دي.

نجیبه: ګلالۍ جانې، ښوک چې موټر لري تر هوايي ډګره په خپلو ګاډو کې راځي، ما او تا غوندې خو په ټکسي کې نه راځي کنه.

ګلالۍ: ښه یا نې چې دا د خلکو موټرې دي.

نجیبه: هو او دا ټیکسیانې دلته ځکه ولاړې دي که ما او تا غوندې ښوک له بل ځای نه



کابل ته راشي که بار او وسایل ورسره وي بیا په دغو ټیکسیانو کې خپلو کورونو ته ځي.

ګلالۍ: څونه ښه ده چې همدلته نږدې موټرې هم شته. وئ نجیبې ستړې شوم، دلته څونه ښه سالون دی، څوکۍ هم په کې شته، دلته به کښېنو.

نجیبه: نه، نه ګلالۍ جانې مونږ او تاسو ته یې په ټکټونو کې د پرواز وخت نهه بجې لیکلی دی، مونږ باید له دغه وخت نه وړاندې ورسېږو.

ګلالۍ: اوس خو دا دی اته بجې دي، وخت خو لا ډېر دی، لږ به کښېنو.

نجیبه: ګلالۍ دلته نه کښېنو دا ځای یواځې د هغو خلکو د ناستې لپاره دی چې د خپلو مېلمنو راتګ ته انتظار باسي، مونږ او تاسو ته د ناستې لپاره بل ځای جوړ شوی دی، په ترمینل کې.

ګلالۍ: نجیبې یوه پوښتنه درنه کوم، ته لکه چې مخکې هم دلته راغلې یې که څنګه؟

نجیبه: هو ګلالۍ جانې تېر کال زما مور ناروغه وه، هندوستان ته مو بوتله، نو زه او ورور مې ورسره تللي وو، ځکه زه بلده یمه.

ګلالۍ: زه خو وایم کنه چې په هر څه پوهېږې، څه ډېره ښه ده چې ته خو راسره یې، په هرات کې به د پوهنتون په لیلیې کې هم ګډ اوسېږو.

نجیبه: انشاء الله چې په خیر ورسېږو.

ګلالۍ: وئ نجیبې دلته څونه ډېرې الوتکې ولاړې دي.

نجیبه: هو هاخوا مه ځه، هغه د الوتکو د ودرېدو ځای دی، هلته څوک له دې لارې نه تېرېږي.

ګلالۍ: د الوتکې خوا ته به څنګه ځو؟

نجیبه: اول به دغه مخامخ دهلیز ته، چې ترمینل نومېږي، ورځو، بیا به د انتظار سالون ته ورځو او بیا چې د الوتکې د الوتنې مهال شو الوتکې ته به ورپورته کېږو.

ګلالۍ: ښه سمه، ده دا دهلیز خو هم راورسېده.

نجیبه: هو، هو ودرېږه، مه ورننوځه.



(د خلکو ګڼه ګونه)

ګلالۍ: ولې نجیبې دلته خو بیا خلک ولاړ دي، کنه دا څه کوي؟

نجیبه: دلته بیا د خلکو پاسپورټونه او ټیکټونه ګوري.

ګلالۍ: دلته خو څو غرفې دي او په هرې غرفې یې نومونه لیکلي. آریانا افغان هوايي شرکت، پامیر هوايي شرکت، کام ایر هوايي شرکت، صافي هوايي شرکت، دا یې د څه لپاره لیکلي دي؟

نجیبه: ګلالۍ جانې هر مسافر چې د هر هوايي شرکت ټکټ اخیستی وي دلته د هماغه شرکت نمایندګي خپل مسافرینو ته لارښوونه کوي، جمع کوي یې او د پرواز لپاره یې آماده کوي.

ګلالۍ: ښه، ښه دا دی زموږ نوبت را ورسېده.

نجیبه: هو، خو موږ مخکې ورځو.

ګلالۍ: ولې؟

نجیبه: ځکه چې موږ د آریانا افغان هوايي شرکت ټکټونه اخیستي او دغه آخرنۍ غرفه د آریانا افغان هوايي شرکت ده.

ګلالۍ: نجیبې دا مامور څه غواړي، غږ کوي درته.

نجیبه: هو د آریانا ټکټونه غواړي. دغه دی واخلئ.

مامور: هه دا ټکټونه او دا مو د بیکونو لپاره.

نجیبه: کور دې ودان، مننه.

ګلالۍ: نجیبې هغه مامور خو ټکټونه نیمايي وشکول کنه.

نجیبه: هو دا یې ځکه وشکول چې نیم یې له ځان سره ساتي، الوتکې ته د ختو پر وخت کې بیا د هماغې له مخې خپل مسافر معلوموي.

ګلالۍ: او دا نور کاغذونه یې د څه لپاره درکړل.

نجیبه: دا کاغذونه هم نیمايي په دغو بیکونو لګول کېږي، نیم یې موږ له ځان سره ... .





گلالۍ: د څه لپاره؟

نجيبه: د دې لپاره اوس دا بکسونه له موږ نه اخلي او په الوتکه کې يې اچوي، کله چې هرات ته ورسېدو موږ خپل بيکونه د همدغو نيمو نيمو کاغذونو په واسطه، چې له موږ سره دي، ترلاسه کوو.

گلالۍ: څونه ښه، فکر يې کړی دی چې د چا بکسونه ورک نه شي.

نجيبه: هو کنه، هله گلالۍ اوس بيا دا بکسونه د دغه ماشين مخې ته په دغه پټه باندې کېږده.

گلالۍ د څه لپاره؟

نجيبه: دلته د آخر ځل زموږ بيکونه او وسايل په کمپيوټري تلويزيون معاينه کوي.

گلالۍ: د څه لپاره، دوی خو موږ تالاشي کړو کنه.

نجيبه: د دې لپاره هر شی چې په بکس کې وي معلومېږي، چې څوک څه شی قاچاق نه کړي.

گلالۍ: دا دی نجيبې زموږ بکسونه خو ديخوا راووتل.

نجيبه: هو هله راواېې خله او په دغه پټه باندې، چې روانه ده، دلته يې کېږده.

گلالۍ: دلته يې نو د څه لپاره ږدو؟

نجيبه: دلته يې نو د آخر ځل لپاره ږدو، ځي او د الوتکې خلک يې وړي په الوتکه کې يې اچوي.

گلالۍ: دا دی کې مې ښودل.

نجيبه: بس نور يې نو پرېږده، په خپله ځي.

گلالۍ: ښه اوس نو څه کوو؟

نجيبه: راځه نو چې اوس دغه د انتظار خونې سالون ته ورننوځو.

گلالۍ: سمه ده، درځه چې ځو.

نجيبه: گلالۍ هاخوا مه ځه دېخوا راځه.

گلالۍ: ولې خو دا هم سالون دی کنه.



نجیبه: ستا خبره سمه ده، هو هغه سالون ته هغه خلک ورځي چې له هېواده دباندې ځي.
موږ خو داخلي پرواز لرو، هرات ته ځو.
ګلالۍ: ښه يعنې دا سالون ته يواځې هغه خلک ځي چې له هېواده دباندې ځي.
نجیبه: هو، او دې سالون ته هغه خلک ورننوځي چې داخلي پروازونه لري. راځه ننوځو.
ګلالۍ: اوهو دلته څونه ډېر خلک په څوکيو باندې ناست دي.
نجیبه: هو دا ټول خلک د افغانستان بېلا بېلو ولايتونو ته ځي. راځه کښېنه.
ګلالۍ: دا دی کښېناستم.
نجیبه: دلته د خوراک لپاره کانټين هم شته، د لمانځه لپاره هاخوا ګوره وړوکی جومات هم شته.
ګلالۍ: او هاغلته خو يې ليکلي نارينه تشناب او ښځينه تشناب.
نجیبه: هو اوس نو نهه بجې کېدونکې دي، موږ به ځو الوتکې ته به خېژو.
ګلالۍ: هو له خيره، ته چپ شه په لاوډ سپيکر کې وويل هرات ته تلونکي مسافر دې ځانونه آماده کړي.
نجیبه: هو دا دی ملي بس موټر راغی ورخيژه دا مو د الوتکې خوا ته بيايي.

(موټر ته خېژي بېرته ترې د الوتکې خوا ته کوزېږي.)
ګلالۍ: او هو دا الوتکه څونه لوړه ده، لکه د کور بام ته چې خېژې، هغه خلک په هغه زينه باندې څونه جګ شول.
نجیبه: هو راځه ګلالۍ چې ورخېژو.
ګلالۍ: نجيبې راځه پر همدغو اولو چوکيو کښېنو.
نجیبه: نه، نه ګلالۍ جانې دا د نورو خلکو چوکۍ دي.
ګلالۍ: نو موږ چېرته کښېنو.
نجیبه: موږ ته يې په ټکټونو کې ۱۶ او ۱۵ چوکۍ ليکلي دي. دغه دی ګوره دلته يې



شمېره ليکل شوې ده. دا ښيښې خواته، ته کښېنه د ښخوا به زه کښېنم.

ګلالۍ: دا دی کښېناستم.

نجيبې: د اخوا کې د کمربند دی، اول يې زه ترم ګوره ... دا دی او س يې ته هم وتړه.

ګلالۍ: دا دی و مې تاړه.

نجيبه: آفرين بس، نو له خيره اوس الوتکه الوځي او هرات ته به ځو.

د متن لنډيز:

په تېرو وختونو کې د لېږد او رالېږد وسايل يا ټرانسپورټ ډېر ساده و، د نن ورځې په څېر الوتکې نه وې جوړې شوې. د نن ورځې وګړي له يو ځای څخه بل ځای ته د موټرونو، اورګاډيو او الوتکو په واسطه تګ راتګ کوي، چې د موټرونو او اورګاډيو د لېږدونې چارو ته ځمکنۍ ټرانسپورټ او د الوتکو د الوتنې کار ته هوايي ټرانسپورټ وايي.

په افغانستان کې هم د الوتکو شرکتونه د پخوا نه زبات شوي، پخوا يوازې د آريانا هوايي شرکت زموږ هېوادوال له يو ځای نه بل ځای ته لېږدول، اوس د پامير، کام اير، صافي په نامه نور خصوصي هوايي شرکتونه جوړ شوي دي. کله چې موږ کوم هېواد ته او يا دننه په هېواد کې د الوتکې په واسطه سفر کوو، بايد د هوايي ډګر د کارکوونکو ټولو لارښوونو ته غوږ ونيسو او د هغو د لارښوونې سره سم په الوتکه کې کښېنو او خپل سامان د ټکټ او سند په واسطه هغوی ته تسليم کړو، تر څو چې له الوتکې څخه د کوزېدلو پر مهال له ستونزو سره مخ نشو.




۱ـ د موټرو په واسطه تګ راتګ ته ځمکنی ټرانسپورټ وايي، هغه تګ راتګ، چې د الوتکو په واسطه ترسره کېږي، دغه لېږد رالېږد په کوم نوم يادېږي. د هغه په اړه دې يو زده

کوونکی خبرې وکړي.

۲_ یو زده‌کوونکی دې هوايي ډګر ته له رسېدلو سره سم هغه سپارښتنې، چې مسافرو لپاره د لوست په متن کې راغلي وي بیان کړي، که چېرته یې خبرې نیمګړتیا ولري بل زده‌کوونکی دې د تختې مخې ته ورشي او هغه دې په سمه توګه بیان کړي.

۳_ څو زده‌کوونکي دې د خبرو اترو د اصلي مفهوم په هکله وغږېږي.

۴_ څو زده‌کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ورکړي.

- په هېواد کې کوم کسان د الوتکو د چلولو آزموینه ورکولای شي؟
- هغه څوک چې الوتکه په هوا کې الوزي په کوم نوم یادېږي؟
- د الوتکو د چلولو لپاره د قوانینو د زده‌کړې ته اړتیا لیدل کېږي او که نه؟
- څو تنه زده‌کوونکي دې لاندې جملې ته په خپله خوښه انکشاف ورکړي او بیا دې خپلو ټولګیوالو ته و وايي.

زموږ په هېواد کې هوايي شرکتونه شته، چې نومونه یې دا دي:

۱_ .................................... ۲_ ....................................

۳_ .................................... ۴_ ....................................

۵_ څو تنه زده‌کوونکي دې په وار سره د هوايي ډګر د پلټنې، د سامانونو د وړلو او د پاسپورټ د کنټرول په هکله وغږېږي، که چېرته یې خبرې نیمګړتیا ولري بل زده‌کوونکی دې د تختې مخې ته ورشي او هغه دې په سمه توګه بیان کړي.

۶_ څو زده‌کوونکي دې په متن کې راغلي اصطلاحات په نښه کړي او خپلو ټولګیوالو ته دې په لوړ آواز ولولي، بیا دې یو زده‌کوونکی د تختې مخې ته ورشي د نوموړې اصطلاح مفهوم دې په خپله ژبه او ساده توګه بیان کړي.




زده‌کوونکي دې د هوايي ترافیکو یا د هوايي ترانسپورټ په هکله څو کرښې مقاله ولیکي او په راتلونکي درسي ساعت کې دې یې خپلو ټولګیوالو ته خپله ولولي.

# په قفس کې بندي بلبل



په قفس کې د بندي بلبل په نامه شعر د مولوي صالح محمد کندهاري دی چې د سراج الاخبار په دویمه دوره کې د امیر حبیب الله خان په وخت کې خپور شو. دا شعر د آزادۍ غوښتنې پیغام لري د همدې پیغام له امله حکومت يې په سراج الاخبار کې د دغسې مضامینو خپرول بند کړل.

دې شعر ولس کې غوغا جوړه کړه او خلک يې په احساساتو راوستل. دا شعر هغه وخت د هر چا په خوله و او د سراج الاخبار ګڼه لاس په لاس ګرځېده.

ـ تاسې د مولوي صالح محمد په اړه څه معلومات لرئ؟

ـ کله مو په قفس کې د بندي بلبل شعر لوستی یا اورېدلی دی؟

یو سحر زما تر غوږ ســـوله بلبله    په قفـــــــس کې یې ژړل دا یې ویلــه
چې بـنـدي سـوم د صـیـاد لـه سخته دله    ولې نه پوښتي څوک حال زما یو له بله
ولـې نـسـتـه بـې فـغـانـه کـارو بـار زما
ولـې حـبـس ابـدي راغـی پـه وار زما
نه محرم چې د زړه حال ورتـه بیان کړم    نـه مـې وس چې خـبـرداره بلبلان کړم
نه مـــلـګري چې چمن ته یې روان کړم    بیا بیان ورتـه د ګل او د ریـحـان کـړم
خپل زړه ډک د ارمانو ورتـه څالي کړم
ټول مـرغان د چمنو په ځان حالي کړم
چاتـه وژاړم پـه چـا بـانـدې فـریـاد کړم    چاته خاورې په خپل سربانديې باد کړم
چاته وګـورم په څه شي زړګـی ښـاد کړم    د صیاد لـه لاسـه چاته عـرض وداد کړم
څه راوسـوه چې د تور قفس بندي سوم
نـه خلاصیږم پـه دا بند کـې ابـدي سوم
ولـې زه لـه خپله سیله را جلا سوم    ولـې زه د خـپـل وطـنـه را جـدا سوم
ولـې زه پـه ویـر اختـه پـه واویـلا سوم    کـورو کلی مې سوپا ته خـوار تنها سوم
کم ظالم کړمه بندي خدای دې بندي کړي
خدای دې ماغوندې بندي په جدایي کړي
اوس بـه زه لکه هـا نـور پـه هـوا تلمه    پـــه هـــوس د آزادی بـــه نـــازیـدمـه
پـرغـونـچـه بـــه د ګـلانــو مـسـیــد مه    ورځ پـه ورځ بـه غـوړیـدمـه لوبیدمه
چا بندي کړم خدایه تی په ځان اخته کړي
په قفس یې د زنـدان ځګر سوخته کړي
اوس بـه ګـرځـېـدم آزاد پـه چمنو کې    آلوتم بـه پـه صـحـرا او پـه بـاغـو کې
مست به ګرځېدم خوشحال په شګوفو کې    ولـې اوس یـم پـه غمو پـه اندیښنو کې
چـې بـنـدي دې د قـفـس کـړمـه صیاده
خـدای دې ماغوندې بندي که ای آزاده



الـغـرض چـې ده وهـلـې دا نـارې    د قـفـس لـه لاســه و پـه غلبلې
چـې نـاگـه د چـمـن بـاد راغــی د کښې    چـې پرونـښت دا یـې وواتـه لـه خولې
مـگـر دا بـاد د چـمـن لـه خـوا راغـلی
چې یې زمـا صبرو آرام را څخه وړی
اوس بیا گـل او پسرلی هغه بهار دی    د نـرگـس او شـگـوفـو گـرم بــازار دی
د تـوتـیـانـو پـه گـلـشـن کـې چـغـهـار دی    پـه چـمـن کـې د بـلـبـلـو چـغـهـار دی
پـــر گـــلانـــو الـــوتـــه کـــا پـــه خـنـدا
زه بـنـدي یـم د قـفـس او پـه ژړا
زړه مـې ډک دی سـره چـوي د ارمانه    خدایـه ژرمـې خـلاصـوې لـه دې زندانه
نور مې مه پرېږدې په دې ځای کې سبحانه    بـیـا مـې ورســوې ژرتـر خـپـل بوستانه
کـه دې زه یـمـه قـفـس تـه پـیـدا کـړی
بـیـا وزر دی ولـې مـاتـه دی را کړی
څـو تـر څـو بـه یـم پـه دې جـورسـتـم کـې    څـو تـر څـو بـه یـم پـه آه او پـه الـم کـې
څـو تـر څـو بـه پـه ژړایـم او پـه غـم کـې    څـو تـر څـو بـه یمه دارنـگ پـه ماتم کـې
چې امید مې د خلاصی نسته هیڅکله
نو بهتر دی مرگ تر دې ژوند یو په سله
بیانو چـپ سـو یـو ساعت پـه تـاُمـل سـو    زما خیال دا سو چې د غم په تحمل سو
بیایې نـارې کړې همرازه د سور گل سو    ویـلـې: آه چـې د صـیـاد لا تـغـافـل سـو
ځـان کـه مـړ چې لـه ذلـتـه نـجـات مومې
پـه گـوښـه کـې د عـدم بـه حـیـات مومې
یــو ســاعــت مـتـفـکـر و حــیــران پـاتـه    نـه یـې شـکـرو شـکـایـت کـاوه و چاته
چې بیـا بـاد د چـمـن راغــی دده خواته    آه یې وکیښ عرض یې وکی خپل مولاته
لـکـه زه هـسـې بـنـدي سـې ای صـیـاده!
د وطــن پــه جــدایــي ســې نــامــراده



زه چې فخر د چمن زیب د بوستان وم   نغمه خوان د خپلې ځالې او اشیان وم
د باغو د ښو باغچو روح روان وم   د سرو گلو پرښنا خو به ثنا خوان وم
د یـولادو پـه پنجره کـې د ې بندي کړم
د هر کس و د ناکس دې ریشخندي کړم
زه بـه تـل د بـاغ پـر سـر ښـه پـه هـوا وم   ښاخ پر ښـاخ به بیا پـه څه نـازو ادا وم
د گـلانـو پـر سـرو بـه پـه خـنـدا وم   په ځالی کې به وم ناست یا په صحرا وم
نـه بندي وم د قفس نـه مـې هیڅ غـم و
نـه مـې اوښـکې بهیدې نـه مـې ماتم و
چې سحر بـه زه لـه ځالې پـه هـوا سوم   په گلشن کې به د عشق نغمه سـرا سوم
چې له ښاخه به پر گل باندې را تا سوم   یاسـمـن و یـا سمین تـه بـه گـویـا سوم
چې دا هر سهار خپل مرگ په قفس وینم
ولې نه مرم چې به بیا زه قفس وینم؟
پـه حسـرت او پـه افسـوس یې دا ویله   وگـلـشـن تـه یـې کـتـل بـیـا یـې ژړلـه
د قـفـس و دروازې تـه یـې ځغستله   لار یـې نـه وه وزرو نـی سـر پوله
پـه هـوا سـو سـر یـې ونـښـت لـه قفسه
وینې توی سوې سور پور ولوید له هوسه
سر تر پایه په سـرو وینو کې غرقاب و   ځان بایللی، زړه زخمي حال یې خراب و
بیا بیهوښه یـا پـرهـوښ پـه اضـطـراب و   چې پرهوښ به سو گویا نه په دا باب و:
سـرمـې بـایـلـو پـه هـوا د آزادۍ
شـکـر شـکـر سـوم فـدا د آزادۍ"



مولوی صالح محمد هوتک د محمد اکبر هوتک زوی په (۱۳۰۷) هجری قمری کال په کندهار کې زېږېدلی و. نوموړی پیاوړی ښوونکی، لیکوال، شاعر او ژورنالست و. کلونه کلونه یې د حبیبیې ښوونځي د لومړني پښتو ښوونکي، دکندهار د پوهنې د مدیر، کندهار ادبي انجمن غړي، د پښتو ټولنې غړي په توګه د هیواد په فرهنګي ډګر کې د یادونې او ستاینې وړ خدمتونه کړي.

زیات شمیر درسي، علمي او ادبي لیکلي او ژباړلي چاپ شوي آثار لري، چې د بیلګې په توګه یې د پښتو ژبې لومړی، دویم او دریم درسي کتابونه، پښتو صرف و نحوه، پښتو ژبه لومړی او دویم ټوک، پښتو مثنوي، تذکرة الشعراء او د شعرونو ټولګه "پاشلې وینا" نومونه اخلو. صالح محمد هوتک پر (۱۳۳۹) لمریز کال مړ او دکندهار د حضرت جي بابا په هدیره کې ښخ دی.

د متن لنډیز:

د مولوی صالح محمد هوتک دا شعر (چې د عبدالهادي داوی د دري شعر آزاده ژباړه ده) هغه مهال ویلی چې زموږ هیواد د انګریزي ښکیلاک تر ولکې لاندې و. شاعر خپل ولس او هیواد له هغه بندي بلبل سره تشبیه کړی چې ښکاري د خپل دام په لومه کې را ښکیل کړی، په پنجره کې یې بندي او د آزادۍ له نعمت څخه یې بې برخې کړی دی. نور ملګري یې په آزاده هوا او بڼونو کې یو خوا بله خوا الوزي، خو دا د بند ستونزمنې شپې تیروي. دغسې شاعر په کنایي ډول د خپل هیواد او خلکو د ژوند حال بیانوي چې د پرمختګ او ترقۍ له کاروانه وروسته پاتې او له ډول ډول بدمرغیو سره مخامخ دی. شاعر د بندي بلبل د هغو هڅو او هلو ځلو یادونه او ستاینه کوي چې د خپلې آزادۍ او له پنجرې څخه د وتلو له لپاره یې کوي او په پای کې یې په دی لړکې سر د پنجرې په یوه سیخ لګیږي، لڼد را پریوزي او بې هوښه کیږي. کله چې په هوښ کیږي، نو د حال په ژبه له ځان سره وایي چې که د آزادۍ په لار کې سر هم لاړشي پروانه وي. شاعر په دې ډول د شعر په خوږه او رنګینه ژبه خپلو هیوادوالو ته دا پیغام وراندې کوي چې د هیواد آزادۍ لپاره سرښندنې ته چمتو او په دغه لاره کې هر اړخیزې هلې ځلې، مبارزه او مقابله وکړي، تر څو خپل هیواد د ښکیلاک له منګولو خلاص کړي.



## فعاليتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په چوپه خوله په ډېر غور او د قت سره ولولي. ستونزمنې کلمې دې په نښه کړي.

۲ـ زده کوونکي دې په وار سره د شعر یوه یوه کړۍ (بند) ولولي.

۳ـ زده کوونکي دې یو یو په وار سره د ټولګي په وړاندې د متن مفهوم پخپلو عباراتو ووايي.

۴ـ په دې لاندې پوښتنو دې د لوست ارزونه وشي:

- آزادي څه ته وايي؟
- بندیتوب یا اسارت څه دی؟
- بندي بلبل په پنجره کې څه ویل؟
- شاعر بندي بلبل او پنجره له څه شي سره تشبیه کړي دي؟
- شاعر خپلو هیوادوالو ته ته شعر په ژبه څه ډول پیغام وړاندې کوي؟
- د آزادۍ د ترلاسه کولو له پاره څه ته اړتیا لیدل کیږي؟
- له دې شعر څخه مو څه مفهوم ترلاسه کړ؟

۵ـ څو تنه زده کوونکي دې د نوبت له مخې د آزادۍ د اهمیت په اړه خبرې وکړي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د آزادۍ په هکله لنډه مقاله ولیکي، په راتلونکي پښتو درسي ساعت کې دې هغه نورو ټولګیوالو ته واوروي.

# غـزل



ـ تاسې د شعر کوم کوم ډولونه پېژنئ؟

ـ څوک ویلی شي چې غزل څه ډول شعر دی؟

غزل په لغت کې له ښځو سره خبرو او یا هغه شعر ته وایي چې موضوع یې مینه او عشق وي، خو په ادبي اصطلاح د شعر یو ډول دی چې نه یوازې عشقي، بلکې هر ډول موضوعات په کې ځایېږي. د دې ډول شعر د بیتونو شمېر له پنځو څخه نیولې کله کله تر پنځلسو او ان تر شلو پورې رسېږي. د غزل ټول بیتونه په یو وزن وي او د قصیدې په څېر په قافیه کې له ((مطلع)) څخه پېروي کوي. لومړی بیت یې ((مطلع)) او وروستي ته ((مقطع)) وایي، چې معمولاً په هغه کې شاعر خپل نوم یا تخلص راوړي.

پښتو غزل په کلاسیکه یا منځنۍ ادبي دوره کې خپل بشپړتیایي پړاو ته ورسېد. په دغه دوره کې ډېر پیاوړي غزل ویونکي شاعران لرو. یو له هغو څخه خوږ ژبی شاعر عبدالرحمٰن بابا دی، چې په دې لوست کې یې یو غزل لولو.

## غزل

دنیادار که مستغني په سیم و زر دی
هنر مندو ځه گنج د خپل هنر دی
بېهوده به زورور و ځان ته و ایي
د دنیا سړی که هر څو زورور دی
هسې مه وایه چې زه یم په جهان کې
پیدا کړی خدای د سر د پاسه سر دی
ځیني ځیني یې ولیان، پېغمبران کړل
نه چې هر سړی ولي او پېغمبر دی
جو دانه قدر یو لعل په کې پیدا شي
نور جهان واړه د تورو کانو غر دی
یو بادشاه دی چې لښکرې پسې درومي
نه په هر یوه سړي پسې لښکر دی
پیدا کړي خدای سړي په تفاوت دي
هسې نه چې جهان واړه برابر دی
که د عمر و رفتن ته څوک نظر کا
دا به وایي چې آفتاب د مازدیگر دی
چې یې سر په ځمکه ایښی وي و یار ته
په آسمان باندې ختلی لکه لمر دی
تعجب زما د دُرو اوښکو مه کړه
ما موندلی په دا بحر کې گوهر دی
د ریاء خرقه یې خدای مه کړه په غاړه
رحمان کوږ دستار ترلی قلندر دی

(عبدالرحمٰن بابا)



عبدالرحمٰن بابا د پښتو ژبې نومیالی شاعر دی، چې په ۱۰۴۲هجري قمري کال د پښتونخوا د پېښور په بهادر کلي کې زېږېدلی و. په ۱۱۲۸هجري قمري کال په پېښور کې مړ شوی او د هزارخانې په هديره کې ښخ دی. عبدالرحمٰن بابا په پښتنو کې دومره مقبوليت ترلاسه کړی چې د ((بابا)) په درانه لقب يې منلی او نمانځلی دی. شعر يې د خلکو په خولو او ژبو ګرځي او د شعر ديوان يې د هر پښتون په کور کې شته. د زړه په مينه يې لولي او پرلارښوونو يې عمل کوي.

د متن لنډيز:

عبدالرحمٰن بابا د شعر په پيلامه کې د هنر ارزښت او اهميت بيانوي او هنرمند په خپل هنر داسې ډاډه بولي، لکه شتمن چې په خپلو شتو او پانګه ډاډمن وي.

بابا لارښوونه کوي چې د نړۍ خلک دې د غرور له مخې ځان زورور نه بولي، بلکې د واقعي زور او ځواک خاوند حق تعالی دی.

په دنيا کې دې څوک غرور نه کوي، د هر سر له پاسه بل سر شته. د دنيا وګړي د معنوي ارزښت له مخې يو ډول نه دي، څوک ټيټه او څوک لوړه مرتبه لري. يو شخص وي چې خلک پر هغه راټولېږي او د واک چلولو صلاحيت پيدا کوي. هر څوک له دې منزلت څخه نشي برخمن کېدلی. د دې نړۍ عمر بقا او پايښت نه لري او داسې ژر تېرېږي، لکه د مازيګر لمر چې ژر ژر پرېوځي. عبدالرحمٰن بابا په خپلې غريبۍ او قلندرۍ او په زاړه پټکي وياړي او د ريباء د اطلسو او زر بافتو له خرقې او چپن څخه بېزاره دی.

## فعاليتونه

۱ـ زده کوونکي دې په وار سره د شعر يو يو بيت ولولي.

۲ـ ښوونکی دې د اړتيا په وخت کې له هغوی سره مرسته وکړي.

۳ــ زده کوونکي دې وګومارل شي چې شعر په چوپه خوله په ډېر غور او دقت سره ولولي، ستونزمنې کلمې یا لغتونه دې په نښه کړي.
۴ــ ښوونکی دې یو یو زده کوونکی پورته کړي چې خپلې په نښه کړې ستونزمنې کلمې ولولي. د لوستل شوو کلمو لست دې توحید، بشپړ او هغه دې پر تخته ولیکي.
۵ــ ځینې لغتونه دې د زده کوونکو په وسیله معنا او پر تخته ولیکي او پاتې ناحل شوې کلمې دې په خپله حل کړي.
۶ــ زده کوونکي دې پر تخته لیکل شوې کلمې او د هغو معناګانې په خپلو کتابچو کې ولیکي.
۷ــ ښوونکی دې دوه دوه زده کوونکي پورته کړي. لومړی دې یو د خپلې خوښې بیت ولولي او هغه بل زده کوونکی دې یې معنا کړي، بیا دې هغه یو د خپلې خوښې بیت ولولي او دا بل دې یې معنا کړي. دا لړۍ دې پر ټول ټولګي تطبیق شي. ښوونکی دې د اړتیا په وخت کې د معنا او مفهوم په سمون کې مرسته وکړي.

۸ــ زده کوونکي دې وګومارل شي چې متن په غور او دقت ولولي او په هغه کې جمع نومونه په نښه کړي، بیا دې هر یو خپل په نښه کړي جمع نومونه د ټولګیوالو په وړاندې ولولي، چې یو یو تن د نوم مفرده بڼه ورته وایي.

۹ــ ښوونکی دې د لوستل شوو نومونو بشپړ توحیدي لست جوړ او پرتخته ولیکي، یو یو زده کوونکی دې تختې ته وروبولي چې یو د جمع نوم په مناسبه جمله کې استعمال کړي.




زده کوونکي دې د عبدالرحمٰن بابا د شعر مفهوم په خپلو الفاظو ولیکي، د پښتو په راتلونکي درسي ساعت کې دې هغه د ټولګیوالو په وړاندې ولولي.



# پښتو ادبي تذکرې




ـ تاسې په عامه توگه د تذکرې په معنا او مفهوم پوهېږئ چې څه شي ته وايي؟

ـ تاسې دمخه د ادبي تذکرې نوم اورېدلی او یا مو په دې نامه کوم اثر لیدلی دی؟

ـ دمخه مو داسې کوم کتاب لیدلی چې په هغه کې د شاعرانو او لیکوالو ژوند لیکونه (بیوگرافي) او د نظم یا نثر نمونې راغلې وي.

ادبي تذکرې هغه لیکلي اثر یا کتاب ته وايي چې په کې د لیکوالو او شاعرانو د ژوند پېښې او سوانح او د نظم او نثر بېلگې راغلې وي. دا ډول کتابونه لیکل د هرې ژبې په ادبیاتو کې دود دي. په پښتو کې هم له ډېرو لرغونو زمانو څخه دغه ډول لیکلي آثار راپاتې دي، چې هغه موږ د لیکوالو له ژوند پېښو او د نظم او نثر له بېلگو سره آشنا کوي. په دې لوست کې د پښتو ځینې ډېرې پخوانۍ لاس ته راغلې ادبي تذکرې او اوسنۍ ادبي تذکرې درپېژنو.

تذکره عربي کلمه ده، چې ځو معناوې لري: پېژند پاڼې ته هم ویل کېږي او د هغې وسیلې نوم هم دی چې ناروغان په کې له یو ځای څخه بل ته لېږدوي. په ادبي او فرهنګي اصطلاح ادبي تذکره هغه اثر ته ویل کېږي چې د ادیبانو (شاعرانو او لیکوالو) ژوند پېښې او آثار په کې معرفي شوي او د پېژندګلوۍ په ترڅ کې یې د لیکوالو او شاعرانو د نظم او نثر بېلګې هم خوندي کړې وي.

د پښتو لومړنۍ ادبي تذکره، چې ځو پاڼې یې د زمانې له حوادثو خوندي پاتې او تر موږ رارسېدلي هغه د سلیمان ماکو ((تذکرة الاولیاء)) ده. نوموړې هغه تر ۶۱۲هجري قمري کال وروسته د کندهار په ارغستان نومې ځای کې لیکلې ده. د دغې تذکرې په راپاتې ځو پاڼو کې د پښتو څلورو تنو عارفانو، چې د پښتو ژبې شاعران هم دي، ژوند لیکونه او د منظومې وینا بېلګې راغلې دي. د پښتو ژبې دغه لرغوني شاعران: بېټ نیکه، ملکیار غرشین، شیخ اسمعیل او شیخ بختیار دي. که د دې تذکرې بشپړه قلمي نسخه ترلاسه شوې وای، کېدای شو چې نور ډېر عارفان او ادیبان به یې هم راپېژندلی وای. د دغې تذکرې ځو ترلاسه شوې پاڼې په ۱۳۲۰ لمریز کال په پښتانه شعراء لومړی ټوک کې او بیا وروسته ځو ځلې ځانګړې هم چاپ شوې دي.

تر تذکرة الاولیاء وروسته بله ادبي تذکره، چې بشپړه قلمي نسخه یې ترلاسه شوې، هغه ((پټه خزانه)) ده، چې محمد هوتک په ((۱۱۴۱ ـ ۱۱۴۲هـ.ق.)) کال تالیف کړې ده. دغه ادبي تذکره موږ ته د پښتو ډېر لرغوني او د محمد هوتک زمانې ته نږدې او هم مهالي شاعران او لیکوالان راپېژني. په دغو شاعرانو کې شپږ تنه ښځینه شاعرانې هم پېژندل شوي دي.

د پټې خزانې قلمي نسخه، چې د افغانستان ملي آرشیف کې خوندي ده، لومړی ځل په ۱۳۲۳لمریز کال د پښتو ټولنې له خوا او بیا وروسته د بېلا بېلو فرهنګي ادارو او خپرندویه ټولنو له خوا ځو ځله چاپ او خپره شوې ده.

په پټه خزانه کې د ځینو نورو لرغونو تذکرو او د هغو د لیکوالو، لکه د شیخ کټه ((لرغوني پښتانه)) د شیخ بستان بړېڅ ((بستان اولیاء)) د شیخ قاسم ((اولیای افغان)) او



نورو نومونه راغلي، چې ليکوال له دغو آثارو څخه د لرغونو پښتنو شاعرانو شعرونه راخيستي دي، خو دا چې د دغو آثارو قلمي نسخې تر اوسه نه دي ترلاسه شوي، ځکه پرې څه نه وايو او يوازې د نومونو په يادونه يې بسنه کوو.

د پښتو ادب په معاصره ادبي دوره کې ادبي تذکره ليکنه پوهاند عبدالحی حبيبي پيل کړې، چې په ۱۳۲۰لمريز کال يې د پښتانه شعراء لومړی ټوک د پښتو ټولنې له خوا چاپ او خپور شو. وروسته بيا د پښتانه شعراء دوهم ټوک په ۱۳۲۱هـ.ش. کال پوهاند صديق الله رښتين، دريم ټوک په ۱۳۴۲ هـ.ش. د پښتو ټولنې غړو او بيا د همدې لړۍ څلورم او پنځم ټوکونه څېړنپوه عبدالله بختاني ليکلي او پښتو ټولنې خپاره کړي دي.

د پښتو ادبي تذکرو په لړ کې بل ډېر ارزښتناک اثر د عبدالرؤوف بېنوا درې ټوکه اوسني ليکوال دي، چې لومړی ټوک يې په ۱۳۴۱، دويم په ۱۳۴۲ او دريم ۱۳۴۶ هـ.ش. کال چاپ شوی او (۲۵۰) تنه اوسني ليکوال او شاعران په کې پېژندل شوي او د هغوی د نظم او نثر بېلگې يې هم خوندي کړي دي.

د مولوي صالح محمد او سراج الدين ((تذکرة الشعراء)) هم يوه غوره ادبي تذکره ده، چې په (۱۳۶۶هـ.ش.) کال چاپ او خپره شوې ده.

د پوهاند صديق الله رښتين ((پېاوړي شاعران)) او ((نوميالي شاعران)) د حبيب الله رفيع ((ادبي ستوري)) دوه ټوکه، د افضل ټکور ((دا ليکوال او دا څېرې)) د کبرا مظهري ((پښتنې شاعرانې او ليکوالې))، د مؤمن پتوال ((اوسني شاعران)) د شهرت ننگيال ((وينه په قلم کې)) د محمد داؤد وفا ((ستوري د ادب په آسمان کې))، د آرين يون ((د وږمو بهير)) او داسې نورې د پښتو د معاصرې ادبي تذکره ليکنې ډېر ښې بېلگې دي، چې د سلگونو پخوانيو او اوسنيو شاعرانو او ليکوالو ژوند پېښې او د نظم او نثر نمونې په کې خوندي دي.

په پښتونخوا کې هم ډېرې غوره ادبي تذکرې ليکل شوي او چاپ شوي، لکه: د همېش خليل ((ورکه خزانه)) (لومړی او دويم ټوک)، پښتانه ليکوال لومړی ټوک، د قلم خاوندان، د عبدالحليم اثر ((تېر هېر شاعران)) د پروفيسور سيال کاکړ ((د کسي د لمنې

پښتانه لیکوال)) (لومړی ـ دویم ټوک) د افضل رضا ((سل پټ ستوري)) د محمد اشرف غمگین ((د هشنغر ادب)) د شېرشاه ترخوي ((دا څوک دي؟)) (لومړی ـ دوهم ټوک) ((ادبي ستوري))، د خیبر اپریدي ((د خیبر انگازې)) د اخونزاده مساپر ((د پښتو ادب ځلند ستوري))، د مثل خان راهي ((د خوشحال د بڼ گلونه)) د تاج ملي تاج لاثاني ((د مروتو ستوري)) د مراد شینواري ((خیبر ادب)) د قمر صحرایي ((د هزارې نظم زار)) او په لس گونو نورې ادبي تذکرې، چې د زرگونو پخوانیو او اوسنیو شاعرانو او لیکوالو ژوند لیکونه او د نظم او نثر بېلگې په کې خوندي دي.

د ادبي تذکره لیکنې بهیر اوس ډېر گړندی روان دی. په افغانستان او پښتونخوا کې ډېرې غوره ادبي تذکرې لیکل کېږي او د چاپ ډگر ته راوځي. د دغو ادبي تذکرو په لیکلو، تدوین او اوډون کې فرهنگي اداري او ادبي ټولنې ډېره ارزښتناکه ونډه لري. ادبي تذکرې نه یوازې دا چې موږ د پخوانیو او اوسنیو شاعرانو له ژوند پېښو او آثارو سره آشنا کوي، له ادبي تاریخ لیکونکو سره هم د ادبي تاریخ په لیکلو کې ډېره مرسته کوي او هغوی اړ دي، د ادبي تاریخ لیکلو پر وخت د لومړنی او اساسي معلوماتي منبع او مرجع په توگه همدغو ادبي تذکرو ته مراجعه وکړي، نو لازمه ده چې په ادبي تذکرو کې د لیکوالو او شاعرانو د ژوند او آثارو په باب رښتیني معلومات ولیکل شي.

د متن لنډیز:

تذکره عربي کلمه ده. لغوي معناوې د پېژندنې پاڼه او د ناروغ د لېږدېدنې وسیله ده، خو په ادبي اصطلاح کې ادبي تذکره هغه اثر ته ویل کېږي چې په کې د لیکوالو او شاعرانو ژوند لیکونه او د نظم یا نثر بېلگې خوندي کېږي.

په پښتو ادب کې لومړنی ترلاسه شوې ادبي تذکره د سلیمان ماکو ((تذکرة الاولیاء)) ده، چې له ۶۱۲ هجري قمري کال وروسته لیکل شوی، وروسته بیا د محمد هوتک ((پټه خزانه)) د دویمې لاس ته راغلې ادبي تذکرې په توگه یادولی شو. په معاصره

ادبي دوره کې ډېرې غوره ادبي تذکرې په افغانستان او پښتونخوا کې ليکل شوي دي. کولای شو د بېلګې په توګه د پښتانه شعراء پنځه ټوکه، اوسني ليکوال درې ټوکه، دا ليکوال او دا خبرې، وينه په قلم کې، ستوري د ادب په آسمان کې، اوسني شاعران، د کسی د لمنې پښتانه ليکوال (لومړی او دويم ټوک) د هشتنغر ادب، ورکه خزانه (لومړی ـ دويم ټوک)، پښتانه ليکوال (لومړی ټوک)، پښتو ادب ځلنده ستوري، سل پټ ستوري او نورو نومونه واخلو.




۱ـ زده کوونکي دې د متن يوه يوه برخه ولولي. ښوونکی دې د اړتيا پر وخت لازمه مرسته وکړي.

۲ـ زده کوونکي دې متن په غور او دقت سره ولولي، ستونزمن کلمات او مفاهيم دې په نښه کړي، بيا دې هر يو د ټولګي په وړاندې هغه ولولي، ښوونکی دې د هغو بشپړ توحيد شوی لست د تختې پر مخ وليکي. هغه دې لومړی تر ممکنې اندازې د زده کوونکو په وسيله او پاتې ستونزمنې کلمې دې په خپله معنا او تشريح کړي.

۳ـ زده کوونکي دې کلمې او د هغو معناوې په خپلو کتابچو کې وليکي.

۴ـ زده کوونکي دې پر دو سترو ډلو ووېشل شي او دې ته دې وګومارل شي، لومړۍ ډله په متن کې د کتابونو نومونه او دوهمه ډله د ليکوالو او شاعرانو نومونه لست او د دواړو ډلو استازي دې هغه د ټولګي په وړاندې ولولي.

۵_ ښوونکی دې د لوستل شوو کتابونو او لیکوالو یا شاعرانو د نومونو بشپړ لست پر تخته ولیکي، د ځینو مشهورو کتابونو او لیکوالو په باب دې زده کوونکو ته لازمې څرګندونې وکړي.

۶_ په دې لاندې پوښتنو دې د لوست د زده کړې ارزونه وشي.

- د پښتو لومړی ترلاسه شوې ادبي تذکره څه نومېږي او په کې د کومو شاعرانو د ژوند حالات او د شعر بېلګې راغلي دي؟
- پټه خزانه چا لیکلې او څو تنه لیکوال او شاعران په کې پېژندل شوي دي؟
- اوسني لیکوال د چا اثر دی او ټول څو تنه لیکوال او شاعران په څو ټوکونو کې راپېژني؟
- ورکه خزانه (لومړی او دویم ټوک) پښتانه لیکوال لومړی ټوک او د قلم خاوندان د چا اثر دی؟
- ادبي ستوري لومړی ټوک او دویم ټوک چا لیکلی دی؟
- ادبي تذکره په ادب کې څه ارزښت او اهمیت لري؟
- ادبي تذکره څه ډول کتاب وي؟
- د پنځو ادبي تذکرو نومونه واخلئ!
- د پنځو ادبي تذکرو د لیکوالو نومونه واخلئ!




زده کوونکي دې د پښتو کومه پخوانۍ یا اوسنۍ ادبي تذکره پیدا او هغه دې په لنډه توګه معرفي کړي. په راتلونکي پښتو ساعت کې دې هغه د نورو ټولګیوالو په وړاندې ولولي.





# متلونه او محاورې

ـ د متل او محاورې د کلمو له معنا او مفهوم سره آشنا یاست؟

ـ کله مو داسې څوک لیدلي چې د خپلې ادعا د ثبوت لپاره په خبرو کې داسې یوه پخه او کره جمله ووایي چې مقابل لوری قانع کوي او د هغه واقعیت له منلو څخه انکار نه شي کولی؟

متلونه او محاورې د هرې ژبې او ولس په شفاهي ادبیاتو کې یوه ځانګړې ارزښتمنه برخه جوړوي او په ورځنیو خبرو اترو کې یې کارول زیات دي. متلونه او محاورې په ژبه کې هغه پخې، خوږې، پوره او کره خبرې دي چې د ولس د ټولنیز ژوندانه د زرګونو کلونو تجربو نتیجه او نچوړ دی، چې په لنډو جملو او کلمو کې ډېرې ژورې معناګانې پرتې وي.

په دې لوست کې د ولسي ادب دا دواړه ډولونه درپېژنو.

متلونه او محاورې د ولسي ادب دوه ځانګړې ډولونه دي چې دلته یې جلا جلا درپېژنو:

## ۱ـ **متلونه**:

متلونه هغه پخې، خوږې، په تول پوره او کره خبرې دي، چې د یوې ژبې د ویونکو د زرګونو کلونو تولنیز ولسي ژوند له تجربو څخه زېږېدلې او د دوی د ژوند لوری او لارې یې ټاکلې دي.

یا په بله وینا:

متلونه د یو ولس د زرګونو کلونو د ژوندانه د تجربو نتیجه او نچوړ دی، چې د دغه ولس د عقل او منطق ښکارندويي او څرګندويي کوي.

متلونه په عامه توګه ډېرې لنډې، خو پخې او په تول تللې خبرې دي. د ژبني جوړښت له مخې یې هم متن خوږ او معیاري دی. هر څوک یې په خپلو خبرو کې د خپلو خبرو د منطقي او باوري کولو لپاره وایي او بیا نو څوک د کانې داکرښه د ماتولو وړ نه بولي او له واقعیت څخه یې انکار نه شي کولای.

د یوې ژبې ویونکي د متلونو په ترڅ کې د خپل ژوند تجربې یو بل ته لېږدوي او نسلونه نسلونه یې د کانې کرښې بولي او د همدغو تجربو د نچوړ یا نتیجو په رڼاکې خپل ژوند عیاروي او پر هغه عمل کوي.

متلونه د بڼې او شکل له مخې پر دوه ډوله دي:

منظوم متلونه، منثور متلونه

دلته یې هر ډول درپېژنو.

## الف_ منظوم متلونه:

منظوم متلونه معمولاً دوه مسرۍ یا نیم بیتي وي، کله کله یې لومړۍ مسرۍ (نیم بیتي) تر دوهمې اوږدېږي. په منظومو متلونو کې وزن، قافیه، استعارې، کنایي او مجاز ځای شوي وي او د خبرو په لړکې په خواږه آهنګ او لهجه ویل کېږي.

منظوم متلونه تر منثورو متلونو ښه او ژر زده کېږي یا په بله وینا دا چې په نظم دی، نو تر ډېره وخته په ذهن کې پاتې کېږي. د متلونو د عمر د اوږدېدلو او په اسانه او اغېزناکه توګه لېږدېدلو لپاره داکار شوی او هماغه پخې خبرې او د تجربو نچوړ په نظم کې راوړل شوې دي.

د منظومو متلو څو بېلګې:

۱_ سل روپۍ پور که _ د اختر په شپه کور که.

۲_ خپله لاسه _ ګله لاسه

۳_ چې نه یې وي سرې _ نه دې قرت خوري نه غوړي.

۴_ کاڼی به پوست نه شي _ دښمن به دوست نه شي.

۵_ پوره _ ورک دې کړه دوه کوره.

## ب: منثور متلونه:

منثور متلونه په نثر دي. د دې متلونو شمېر ډېر زیات دی. د متلونو دا ډول هم یو ډول ځانګړی آهنګ لري، پخه، خوږه ادبي ژبه په کې کارول شوې او په هماغه ادبي ښکلا او قوت انتقالېږي. دا حکیمانه، پخه او خوږه خبره یا لنډه جمله ویونکی د خبرو په ترڅ کې د مثال په ډول د خپلې وینا د ټینګښت یا د خپلې ادعا د ثبوت لپاره راوړي. هر منثور متل یوه لنډه، خو بشپړه جمله وي، چې د مبتداء او خبر دواړه برخې لري.

منثور متلونه د جوړښت له مخې په څو ډولونو دي، چې مشهور یې دا دي:
تمثیلي متلونه، کیسه ییزه متلونه او عادي متلونه.

د منثورو متلونو څو بېلګې دا دي:

۱ـ وګټه، پيل وخوره.

۲ـ د ښو غوښو ښه ښوروا وي.

۳ـ چې سر دې نه خوږېږي، داغ پرې مه ږده.

۴ـ لاس چې مات شي، غاړې ته ځي.

۵ـ چې غوټه په لاس خلاصېږي خولې ته حاجت نه شته.

## ۲ـ محاورې:

محاورو ته اصطلاحات او ګړنې هم وايي. د نثري ولسي ادب يو ډول دی، چې د جوړښت له مخې د يوې نابشپړې جملې بڼه لري او په هغې کې د حقيقي معنا پر ځای، بله مستعاره معنا استعمالېږي او لکه د متل په څېر په خبرو اترو کې کارول کېږي.

ګړنې يا محاورې د يو ولس د ټولنيز، سياسي او کلتوري ژوندانه د ځينو برخو انځور او د هغو په وړاندې يو ګړنی غبرګون دی، چې زياتره د طنز، کنايې او استعارې په توګه ويل کېږي او ډېره ژوره معنا او مفهوم لري. دا محاورې په واقعيت کې د يوې پېښې يا خبرې د معنا نچوړ او نتيجه وي، چې د خبرو اترو په ترخ کې د مطلق دليل په توګه د خبرو دلنډوالي او غوڅوالي لپاره کارول کېږي.

محاوره يا اصطلاح او ګړنه هم د متل په څېر ډېره پخه او حکيمانه جمله وي او په هماغه بڼه خوله په خوله له يو نسل څخه بل ته لېږدي. دغه محاورې کله کله سيمه ييزې معناوې هم پيدا کوي او يوه اصطلاح يا محاوره په يوه سيمه کې يوه او په بله کې بله معنا لري.

د ګړنو او محاورو څو بېلګې:

۱ـ په جامو کې نه ځايېدل، (د ډېرې خوښۍ حالت ښودل).

۲ـ د آسمان ستوري شمېرل، (ناشونی کار کول).

۳ـ زړه اچول، (ناهيلي کېدل، مايوسه کېدل).



۴_ سپين سترګي کول، (بې حيايي کول).

۵_ باد پيمانه کول، (بې ګټې کار کول).

۶_ پښه نيول، (ځنډ او سوچ کول، انتظار او پلمه کول).

۷_ پوزه پرېکول، (شرمېدل، بې پته کول).

۸_ تندی تروشول، (غوسه کول، ناخوښه کېدل).

۹_ تندی وهل، (ارمان کول، پښېماني کول).

۱۰_ ګوته په غاښ کېدل، (حيرانېدل، تعجب کول).

د متن لنډيز:

متلونه او محاورې د ولسي ادب دوه ځانګړې ډولونه (ژانرونه) دي. متلونه هغه پخې، خوږې په تول پوره او کره خبرې دي، چې د يوې ژبې د ويونکو د زرګونو کلونو تولنيز ژوند له تجربو څخه زېږېدلې دي او د يو ولس د عقل او منطق ډېره ښه ښکارندويي او څرګندويي کوي. دغه متلونه په دوه ډوله دي: منظوم متلونه او منثور متلونه، هر يو يې ځانګړې جوړښت لري.

محاورې، چې اصطلاحات او ګړنې هم ورته وايي، د جوړښت له مخې د يوې نابشپړې جملې په شکل وي او په هغې کې د حقيقي معنا پر ځای بله مجازي يا مستعاره معنا کارول کېږي او دا هم لکه د متل په څېر په خبرو اترو کې استعمالېږي او ډېره ژوره معنا او اغېز ښندي.

## فعاليتونه

۱_ زده کوونکي دې په خپل وار سره د متن يوه يوه برخه د ټولګي په وړاندې ولولي، ښوونکی دې د اړتيا پر مهال د سمې لوستنې لپاره د هغوی مرسته وکړي.

۲_ زده کوونکي دې وګومارل شي چې په متن کې د متل برخه په چوپه خوله په غور او دقت سره ولولي، بیا دې دوه دوه زده کوونکي پورته کړای شي، یو دې یو متل ووایي او هغه بل دې د هغې معنا او مفهوم په خپلو الفاظو کې ټولګیوالو ته ووایي، بیا دې بل زده کوونکی متل ووایي او هغه بل دې یې معنا او مفهوم ووایي. دا لړۍ دې په ټولو زده کوونکو ترپایه پلې کړای شي.

۳_ زده کوونکي دې وګومارل شي چې د لوست په متن کې د محاورې یا ګړنې برخه په چوپه خوله په ډېر غور او دقت ولولي، بیا دې د پورتني مشق او تمرین په څېر دوه زده کوونکي پاڅېږي، یو دې یوه محاوره ووایي او بل دې د هغې مفهوم او د هغه څه لپاره، چې دا ګړنه (محاوره) ویل کېږي، هغه دې بیان کړي. دا لړۍ دې د ټولګي پر ټولو زده کوونکو پلې کړای شي.

۴_ د لوست ارزونه دې په دې لاندې پوښتنو ترسره شي:

- متل څه شی دی؟
- متلونه په څو ډوله دي، نومونه یې واخلئ؟
- منظوم او منثور متلونه څه توپیر سره لري؟
- پنځه متلونه وواياست.
- محاوره څه شی ده؟
- محاوره په خبرو اترو کې د څه لپاره کارول کېږي؟
- محاوره او متل څه توپیر لري؟
- پنځه محاورې وواياست.




زده کوونکي دې په لوست کې له راغلیو متلونو او محاورو پرته نور لس _ لس متلونه او لس محاورې په خپلو کتابچو کې ولیکي. د پښتو لوست په راتلونکي ساعت کې دې هغه نورو ټولګیوالو ته ولولي.

# حلیمه خټکه




ـ تاسې د هېواد په پخوانیو نومیالیو مېرمنو کې د چا له نامه سره آشنايي لرئ؟

ـ آیا کومه پخوانۍ ښځه شاعره پېژنئ؟

ـ آیا پښتو ادب ته د خټکو د کورنۍ د ادبي او فرهنگي خدمتونو په باب څه معلومات لرئ؟

په یوولسمې او دولسمې هجري پېړیو کې په خپله خوشحال خان خټک او د هغه کورنۍ پښتو ژبې او ادب ته د یادونې او ستاینې وړ خدمتونه کړي دي. د دې کورنۍ لیکوالو او شاعرانو د منظومو او منثور آثارو په لیکلو سره د پښتو ادبي پانگه بډایه کړې ده.

د خوشحال خټک پر زامنو (اشرف خان هجري، عبدالقادر خان خټک، صدر خان خټک، گوهر خان خټک، سکندر خان خټک او نورو) سربېره د هغه یوه لور حلیمه خټکه هم د پښتو ژبې تکړه شاعره وه، چې په دې لوست کې یې درپېژنو.

حلیمه خټک د پښتو د نومیالي شاعر، لیکوال او ملي مبارز خوشحال خان خټک لور وه. په ځینو ادبي څېړنو کې یې زېږېدنه پر ۱۰۶۵ هجري قمري کال اټکل شوې ده.

حلیمې خټکې په سرای اکوړي سیمه کې د خوشحال خان په کورنۍ کې سترګې نړۍ ته غړولې او په یو علمي فرهنګي چاپېریال کې رالویه شوې وه. د وخت دودیز دیني او ادبي علوم یې د خپلې کورنۍ له مشرانو او استادانو لوستي او یوه عالمه او عارفه ښځه وه.

حلیمې له تصوف او عرفان سره ډېره مینه درلوده او په دغه سلسله کې د وخت د نومیالي عارف او فاضل روحاني شخصیت شیخ سعدي لاهوري (۱۱۰۶هـ.ق. مړ) څخه، چې د نقشبندیه طریقې لوی مرشد او لارښود و، د خپل سکني ورور نومیالي شاعر او لیکوال عبدالقادر خان خټک په لاس بیعت وکړ او د هغه مریده شوه.

لومړنی ماخذ چې موږ ته د حلیمې خټکې د ژوند، علمي، ادبي او عرفاني شخصیت په باب لږ و ډېر معلومات راکوي هغه د محمد هوتک تألیف کړی اثر ((پټه خزانه)) ده.

محمد هوتک د حلیمې خټکې د زمانې لیکوال دی، په پټه خزانه کې یې لیکلي دي چې: حلیمه بي بي یوه فاضله او عارفه ښځه ده، مېړه یې نه دی کړی، د خپل سکني ورور عبدالقادر خان خټک په کور کې په ستر او پرده ناسته، په ریاضت او د لوی خدای ﷻ په عبادت بوخته ده. د قرآن کریم حافظه هم ده او په کور کې نورو ښځو ته د قرآن کریم لوست او زده کړه کوي. د پښتو ژبې شاعره هم ده، چې په خپله زمانه کې له لوړ نوم او شهرت نه برخمنه او خلک یې شعرونه ډېر خوښوي.

د تصوف او طریقت ډېر کتابونه یې لوستلي دي او چې په ځینو مسئلو کې څه ستونزې ورپېښې شي هغه د مثنوي شریف (د مولانا جلال الدین بلخي اثر) او د حضرت امام رباني د مکتوبات کتاب په مرسته حل کوي.

د پټې خزانې لیکوال د خپل پلار (داؤد هوتک) په حواله د حلیمې خټکې یو شعر په خپل اثر کې خوندي کړی او د دغې شاعرې د شعر پر منځپانګې د تبصرې په ترڅ کې لیکي چې: ((د حلیمې په اشعارو کې مجازي عشق نه ښکاري، بلکې ټول شعرونه یې د حقیقت

پر لار دي او د محبوب حقیقي صفت کا)).

د حلیمې خټکې د شعرونو دیوان یا د اشعارو نورې بېلګې تر اوسه زموږ لاس ته نه دي راغلي، نو ځکه یې د اشعارو د منځپانګې او محتوا په هکله ډېر څه نشو ویلی. د شعر یوه بېلګه یې، چې د پټې خزانې په وسیله خوندي او تر موږ رارسېدلې، هغې ته په کتنه دومره ویلای شو، چې د شعر ژبه یې خوږه، ساده، خو رنګینه او په ادبي ښېګڼو او ښکلاوو پسوللې ده. وینا یې پخه او کره ده، چې موږ ته د دغې شاعرې د لوړې پوهې، بصیرت او شاعرانه استعداد څرګندویې کولی شي.

د حلیمې خټکې د مړینې د کال په اړه محمد هوتک څه نه دي ویلي، یوازې د خپل پلار داؤد هوتک (۱۱۳۶هـ.ق. مړ) له قوله دومره یادونه کوي هغه مهال چې یې پلار بنو ته تللی و دا شاعره لار ژوندۍ او په خلکو کې ښه مشهوره وه.

دلته یې د شعر بېلګه لولو:

## غزل

د آشنای په فکر خوښه هسې شان شوم ... نه پوهېږم چې ممتاز که نور جهان شوم؟
چې یې کرمه ستا په مینه سرفرازه ... ثنا خوانه په څو رنګه د رحمان شوم
چې مجاز مې د ایاز ولاړئ له زړه نه ... سربلنده تر محمود غوندې سلطان شوم
و هر چا و ته چې ګورم واړه دی دی ... د جمال په ننداره یې شادمان شوم
غیر فکر مې له زړه نه رابهر شو ... پر خلیل و پر وعدو باندې یکسان شوم

((حلیمې)) د غماز مکر زیات له حد شو
چې دې بیل له یاره نه کا په ګومان شوم
(پټه خزانه)

د متن لنډیز:
خوشحال خان خټک او د هغه کورنۍ پښتو ادب ته ډېر د قدر وړ خدمتونه کړي دي. حلیمه خټکه چې د خوشحال خان خټک لور وه، د پښتو ژبې پیاوړې شاعره،

يوه عالمه، عارفه او فاضله ښځه وه. نوموړې د خوشحال خان خټک په کورنۍ کې ښځو ته د ديني علومو زده کړه او تدريس کاوه. د شعرونو ديوان يې تراوسه نه دی ترلاسه شوی، يو شعر يې محمد هوتک په خپل اثر ((پټه خزانه)) کې خوندي کړی او تر موږ رارسولی دی.

## فعاليتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په چوپه خوله ولولي او بيا دې زده کوونکي په وار سره د متن يو يو پراګراف د ټولګي په وړاندې ولولي.

۲ـ زده کوونکي دې د ټولګي په وړاندې د متن مفهوم په خپله ژبه ووايي.

۳ـ زده کوونکي دې وګومارل شي چې په متن کې خاص نومونه په نښه او په يو لست کې ترتيب کړي. هر زده کوونکی دې خپل لست کړي نومونه د ټولګي په وړاندې ولولي. ښوونکی دې هغه په بشپړه توګه پر تخته وليکي او د هغو په باب دې زده کوونکو ته لازم معلومات ورکړي.

۴ـ ښوونکی دې په دې لاندې پوښتنو پر لوست د زده کوونکو د پوهېدنې د کچې ارزونه وکړي:

- حليمه خټکه څوک وه؟
- حليمې خټکې د خپلې کورنۍ ښځو ته کومه چاره ترسره کوله؟
- د حليمې خټکې شعر موږ ته څنګه رارسېدلی دی؟
- د خټکو کورنۍ پښتو ادب ته څه خدمتونه کړي دي؟
- د خټکو په کورنۍ کې نور کوم شاعران او ليکوالان پېژنئ؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کور کې د حليمې خټکې شعر مفهوم په خپلو الفاظو وليکي، په راتلونکې پښتو درسي ساعت کې دې هغه د ټولګيوالو په وړاندې ولولي.

# بهرني پښتو پوهان




ـ تاسې داسې بهرني پوهان یا لیکوالان پېژنئ چې د افغانستان او په هغه کې د استوګنو قومونو او ولسونو په هکله یې لیکنې کړې وي؟

ـ د افغانستان او افغانانو په هکله د بهرنیو لیکوالو کوم لیکلی آثر مو لوستی دی؟

ـ تاسې د ((مستشرق)) یا ((ختیځ پوه)) له نامه او اصطلاح سره آشنا یاست، چې چا ته ویل کېږي؟

د نړۍ د نورو هېوادونو، په ځانګړې توګه د اروپا یا لویدیځو هېوادونو هغو لیکوالو او مؤرخینو، چې د آسیايي یا ختیځو هېوادونو په اړه لیکنې، څېړنې او مطالعات کړې دي، مستشرق یا ختیځپوه نومېږي. د نورې نړۍ یو شمېر داسې پوهان او لیکوال شته چې د افغانستان او د هغه د استوګنو قومونو په اړه یې لیکنې او څېړنې کړې دي. په دې لوست کې یو شمېر داسې پوهان، څېړونکي او لیکوال درپېژنو چې د پښتو ژبې، ادب، تاریخ او کلتور په باب یې لیکنې او څېړنې کړې دي.

د نورې نړۍ، په ځانګړې توګه د لویدیځو هېوادونو هغه شمېر پوهان او څېړونکي چې د آسیایي هېوادونو او ولسونو په باب یې د تاریخ په اوږدو کې څېړنې او لیکنې کړي دي او یا یې کوي، هغوی ته د ختیځپوهانو یا مستشرقینو نوم او اصطلاح کاروي.
د همدې ډلې لیکوالو او څېړونکو په ډله کې، چې چا د پښتنو او د هغوی د ټاټوبي (افغانستان او پښتونخوا) په باب لیکنې او څېړنې کړي او یا یې کوي، موږ یې بهرني پښتو پوهان نوموو او دلته یې د پېژندنې په اړه بحث کوو.
دغه بهرني پښتو پوهان زیاتره په هغه زمانه کې، چې انګرېزي ښکېلاک د آسیا لویې وچې ته د خپلې استعماري واکمنۍ او سلطې د پراخولو او د نورو هېوادونو د نیولو او مستعمره کولو په نیت د دې سیمې په هېوادونو کې لومړۍ هند او بیا یې د لوی افغانستان ځینې برخې او ورپسې ټول هېواد په خپله استعماري لومه کې راښکېل کړ، یو شمېر اشخاصو چې زیاتره له دوی سره په سیاسي پوځي، استخباراتي او نورو ډول ډول ماموریتونو کې شامل وو، د خپلو استعماري دندو، ماموریتونو او مکلفیتونو، موخو او اړتیاوو له مخې زموږ د هېواد د استوګنو قومونو او ولسونو د ټاټوبي، ژبو، تاریخ، کلتور او عنعناتو، ادبیاتو او ټولنیز ژوند د بېلا بېلو اړخونو په باب مطالعات، لیکنې او څېړنې او ګروېږنې پیل کړې.
پښتون قوم او ولس ته، چې د دې سیمې او هېواد یو لوی قوم، بلکې یوه ستره توکمیزه کلتوري ټولنه ده، د دغو ختیځپوهانو زیات پام ورواوښت. د دوی ژبه یې زده کړه، د دوی لیکلي او شفاهي ادبیات یې راټول کړل او خپلو خلکو ته یې وژباړل، د دغه قوم او ولس په اړه یې هر اړخیزې څېړنې او لیکنې هم وکړې. دغو ختیځپوهانو د پښتنو د استوګنو سیمو او آن دا چې د دوی د هېواد پلازمېنې (کابل) ته په بېلا بېلو ماموریتونو سفرونه هم وکړل، د خپلو سفرونو یونلیکونه او خاطرې یې ولیکلې، د پښتو د کلاسیکو او همدارنګه د ولسي ادبیاتو د نظم او نثر غور چاڼ ټولګې یې ترتیب او هماغه مهال چاپ او خپرې کړې. د دې سیمې او هېواد تاریخونه یې ولیکل، چې نن موږ د خپل تاریخ په باب ډېر څه په هغو کې موندلی شو.

په همدې ډول په پخواني شوروي اتحاد کې هم د سيمې د نورو هېوادونو په ډله کې د افغانستان او د هغه د مېشتو قومونو او ولسونو په هکله مطالعات، ليکنې او څېړنې پيل شوې، د ختيځ پېژندنې او مطالعاتو انستيتيوټ د شوروي په پلازمېنه (مسکو) کې رامنځته شو، چې دا ډول ليکنې او څېړنې په کې ترسره کېدې او دا لړۍ تر ننه هم روانه ده. په روسيه کې هم د پښتون ټبر د ژبې، تاريخ، کلتور او عنعناتو، ادبياتو او او نورو ټولنيزو مسايلو په هکله ډېرې زباتې ليکنې او څېړنې وشوې.

د پښتنو په باب د ختيځ پوهانو او يا بهرنيو پښتو پوهانو دا ليکنې او څېړنې، چې په هره موخه او هدف هغه مهال تر سره شوي دي، دلته موږ د هغو په څرنگوالي څه نه وايو، يوازې پښتون قوم، ژبې ادب او کلتور ته د دغو څېړنو په ځينو عمومي گټو او ارزښتونو بحث او خبرې کوو.

د دغو ليکنو او څېړنو لومړنۍ گټه او ارزښت خو دا دی چې د همدغو ختيځپوهانو د ليکنو او څېړنو په نتيجه کې د پښتو ژبې ادبيات د نړۍ په ډېرو لرې پرتو هېوادونو کې خپاره شول او هغوی ته يې پښتون د نړۍ د يو ستر توکم په توگه ورو پېژاند او د همدې په پايله کې د پښتنو او نورو ولسونو ترمنځ يو ډول اړيکې رامنځته شوې.

بله گټه يې دا ده چې همدغو ختيځ پوهانو د پښتو قلمي آثار راټول کړل او له ځان سره يې خپلو هېوادونو ته يوړل او په موزيمونو او کتابتونونو کې يې خوندي کړل، چې نن هم هلته خوندي دي او که چېرې دوی دا کار نه وی کړی، نن به هغه هم لکه زموږ نوره فرهنگي شتمني د جگړو د اور خوراک او له خاورو سره خاورې شوې وای. دوی که دا آثار په هر نيت او موخه هلته وړي وي، زموږ لپاره يې دا ژغورنه او خوندي کېدنه لويه گټه ده.

بله گټه او ارزښت يې په دې کې دی چې دغو ليکوالو او څېړونکو د پښتو د منظومو او منثورو کلاسيکو آثارو ډېرې غوره بېلگې هماغه مهال د غور چاڼ په توگه چاپ کړې او دا داسې مهال و چې پښتانه لا د چاپ او صحافت له فن سره نه وو آشنا شوي.

وروسته چې بيا زموږ ليکوالو او څېړونکو د خپلې ژبې او ادبياتو په باب ليکنې



او څېړنې پيل کولې، له همدې آثارو څخه يې د لومړنيو او معتبرو منابعو په توګه کار واخيست. په دغو آثارو کې ګلشن روه، پښتو منتخبات، کليد افغاني او د پښتونخوا شعر هار و بهار او نور د يادونې وړ دي.

البته د بهرنيو پښتو پوهانو په ليکنو او څېړنو کې ځينې ورې لويې نيمګړتياوې او تېروتنې هم شته، چې لامل يې د دغو څېړونکو او پوهانو له پښتو ژبې، کلتور او عنعناتو سره نابشپړه آشنايي او پرې نيمګړې پوهېدنه ده، خو په عامه توګه دا زياتره ليکنې تر ډېره بشپړې او په ډېره دقيقه توګه د هغه وخت د علمي څېړنيزو معيارونو له مخې ترسره شوې دي، نو ځکه موږ ته د خپل قوم، ولس او هېواد په اړه ډېر ګټور معلومات راکوي.

دغه بهرني پښتو پوهان ډېر زيات دي. د هغو ټولو پېژندنه او پر آثارو او افکارو يې بحث کول، په دې لنډه ليکنه کې ناشونې ده. په دې اړه ((په خارج کې پښتو څېړونکي)) د عبدالرحيم ځدراڼ اثر او ((د مغرب په آسمان کې د مشرق ستوري)) د پوهاند دوکتور تربي اثر او همدارنګه زموږ ځينې ادبي تاريخونه دغه بهرني پښتو پوهان په لړ و ډېر تفصيل سره راپېژني. موږ دلته څو تنه بهرني پښتو پوهان په لنډه توګه درپېژنو او د ځينو يوازې نومونه اخلو.

**ډورن:**

پوره نوم يې بوريس اندر ييويچ ډورن دی، په ۱۸۰۵م. کال په جرمني کې زېږېدلی او هورې يې لوړې زده کړې د ختيځپوهنې په څانګه کې ترسره کړې. نوموړی په ځوانۍ کې روسيې ته تللی او د ژوند تر پايه يې هلته د خارکوف او پترز بورک په پوهنتونونو کې د ختيځو ژبو د تدريس چارې ترسره کړې. نوموړي په روسيه کې د پښتو ژبې د تدريس او څېړنې لړۍ پيل کړه. ډورن دغلته د پښتو د قلمي نسخو په راټولولو او پلټنه کې هم ستره ونډه ترسره کړې ده. د ډورن د ((پښتو منتخبات)) په نوم د کلاسيک نظم او نثر يوه ټولګه ترتيب کړې، چې لومړی ځل په (۱۸۴۸م.) کې په روسيه او بيا په ۱۳۵۶ لمريز کال په کابل کې پښتو ټولنې چاپ کړه. نوموړی په ۱۸۸۱م. کال مړ دی.

## راورټي:

په بهرنیو پښتو پوهانو کې هنري جورج راورټي ډېر زیات ارزښتمن کارونه ترسره کړي دي. نوموړي په ۱۸۲۵م. کال په انګلستان کې زېږېدلی او بیا په ځوانۍ کې په هندوستان کې د انګرېزانو په پوځ کې شامل شو. راورټي د ژبو په زده کړه کې د ډېر زیات استعداد څښتن و. لومړی یې د هندوستان یو شمېر ژبې زده کړې او بیا یې په لږه موده کې پښتو ژبه هم زده کړه او پراخې لیکنې او څېړنې یې په کې پیل کړې. نوموړي د پښتو ژبې په اړه آثار لیکلي، چې دلته یې د بېلګې په توګه د پښتو ګرامر، پښتو انګریزي فرهنګ، انګریزي، انګریزي پښتو فرهنګ، ګلشن روه، قصې د ایسپ حکیم، د انجیل ژباړه، د پښتو اشعارو منتخبات او نورو نومونه اخلو. راورټي پر ۱۹۰۶م. کال مړ دی.

## جیمز ډار مستېټر:

دغه نومیالی پښتو پوه په ۱۸۴۹م. کال په فرانسه کې زېږېدلی. په پاریس کې یې په ادبیاتو کې د دوکتورا تر درجې لوړې زده کړې وکړې او بیا په هند کې د ژبنیو څېړنو دنده وروسپارل شوه. د پښتو ژبې په اړه یې په پېښور او هزاره سیمو کې یو لړ څېړنې ترسره کړي.

د نوموړی ډېر مهم اثر پښتو څېړنې دي، چې پوهاند حبیبي او استاد بېنوا پښتو ته راژباړلي او په کابل کې چاپ شوي دي. بل ارزښتناک اثر یې ((د پښتونخوا شعر هار و بهار)) نومېږي، چې نوموړی هغه ولسي حماسي چاربېتې، چې د انګرېزانو د ښکېلاک پر ضد ویل شوي، راټولې او چاپ کړې دي. نوموړی هغه ژبپوه دی چې دا یې جوته کړه پښتو یوه لرغونې آریایي ژبه ده، چې د هندو اریاني ژبو په لویدیځې څانګې پورې اړه لري. ډار مستېټر پر ۱۸۹۴م. کال مړ دی.

**هنري والټر بيليو**:

هنري والټر بيليو انګرېز و. هغه مهال چې پلار يې په هندوستان کې د انګرېزانو په پوځ کې ماموريت درلود، په ۱۸۳۴م. کال د هند په نصيرآباد کې زېږېدلی دی.

هنري بيليو طبي زده کړې کړې وې او د انګرېزانو په پوځ کې ډاکټر و. د امير دوست محمد خان د واکمنۍ په مهال يې کندهار ته هم په يو سياسي پلاوي کې راغلی و. د امير له زوی سردار غلام حيدرخان سره يې چې هغه وخت د کندهار والي ليده کاته کړي وو.

د طب ډاکټر و، خو پښتو ژبه يې ښه زده کړې وه. د پښتو ژبې او قوم په هکله يې ډېرې څېړنې او ليکنې کړې دي، د ځينو نومونه يې دا دي:

۱ـ د پښتو ګرامر، چې لومړی ځل په ۱۸۸۶م. کال په لندن کې چاپ شوی دی.

۲ـ پښتو انګريزي قاموس (۱۸۶۷م. کال چاپ)

۳ـ افغانستان او افغانان (۱۸۷۶م. کال چاپ)

۴ـ د افغانستان قومونه (۱۸۸۷م. کال چاپ)

۵ـ د افغانستان د قوم پېژندنې څېړنه (۱۸۹۱م. کال چاپ).

سربېره پر دې آثارو يې زموږ د پنجاب، سرحد او د يوسفزو په باره کې عمومي رپوټ او له اباسين څخه تر دجلې پورې په نومونو آثار ليکلي او چاپ کړي.

بيليو داسې پښتو زده کړې وه، چې د امبالې په کنفرانس کې يې د امير شېرعلي خان د پښتو وينا انګريزي ژباړه وکړه. دغه ختيځ پوه په ۱۸۸۶م. کال د انګرېزانو په پوځ کې له دندې تقاعد وکړ او په ۱۸۹۲م. کال مړ شو.

لکه چې دمخه مو يادونه وکړه د بهرنيو پښتو پوهانو شمېر زيات دی، د ټولو نومونه هم په دې ليکنه کې نه شي راتلای. د بېلګې په توګه د پخوانيو او معاصرو پوهانو له ډلې څخه د الفنسټون، جان ليډن، توربرن، جان ګورډان لاريمر، روس کيپلې، ډاکټر ميکنزی، هاول، برنز، کلاپروت، ترومپ، مارګنسټرن، ليبيديف، ډاکټر هربرت پنزل، پروفيسور د وربانکوف د نومونو په يادونه بسنه کوو، پورتنيو ليکوالو هره يوه د پښتنو د تاريخ، ژبې، ادب او کلتور په باب په انګرېزي، فرانسوي، روسي او نورو ژبو ځانګړی آثار ليکلي يا ژباړلي، چې زياتره يې چاپ شوي دي.

د متن لنډیز:

هغه بهرني پوهان، چې د ختیځو یا آسیایي هېوادونو په هکله یې لیکنې، څېړنې او مطالعات کړي، مستشرقین یا ختیځپوهان ورته وایي. د دغو ختیځپوهانو په ډله کې داسې اشخاص هم وو چې د پښتو ژبې، ادب، تاریخ او کلتور په باب یې لیکنې، څېړنې، او مطالعات کړي، دغو لیکوالو او څېړونکو ته بهرني پښتوپوهان وایي. د دوی لیکنې او څېړنې چې په هر نیت او موخه ترسره شوي، پښتون ولس ته یې عامه ګټه درلوده. دوی، چې د پښتنو د ادب او تاریخ په باب لیکنې کړي، پښتو ادب یې په بهرنیو ژبو ژباړلی او دغه راز یې پښتنانه نورې نړۍ ته ورپېژندلي دي. د پښتو ډېر قلمي آثار یې خپلو هېوادونو ته وړي او هلته یې خوندي کړي او له ورکېدو یې ژغورلي دي. د پښتو د منظومو او منثورو کلاسیکو آثارو ټولګې یې چاپ کړي، چې زموږ لومړنیو څېړونکو له هغو څخه د معتبرو منابعو په توګه استفاده کړې ده. البته د دغو پوهانو لیکنې ځینې نیمګړتیاوې او تېروتنې هم لري، چې د هغو اصلي لامل د دغو پوهانو د پښتنو له ژبې او کلتور سره لږه او نیمګړې آشنایي ده، خو په عامه توګه د دوی لیکنې په علمي اصولو او معیارونو برابرې پوره او کره دي او موږ ورڅخه په څېړنو کې ډېره ګټه اخیستلای شو.

## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې د متن یوه یوه برخه په خپل وار سره ولولي، ښوونکی دې د اړتیا په وخت کې لازمې سمونې وکړي.

۲ـ زده کوونکي دې یو یو د ټولګي مخې ته راوبلل شي، چې د متن مفهوم په خپلو الفاظو کې نورو ټولګیوالو ته ووایي.

۳ــ زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي او دې ته وګومارل شي چې متن په چوپه خوله ولولي. لومړۍ ډله دې په متن کې راغلي د اشخاصو نومونه او دویمه ډله دې د کتابونو نومونه لست کړي. د هرې ډلې استازی دې هغه د نورو ټولګیوالو په وړاندې ولولي. ښوونکی دې د اشخاصو او کتابونو لست په ځانګړې توګه بشپړ او هغه دې د تختې پر مخ ولیکي.

۴ــ زده کوونکي دې د تختې پر مخ لیکلي لستونه په خپلو کتابچو کې ولیکي. د اړتیا په وخت کې دې له ښوونکي څخه د هغو په باب لازم توضیحات وغواړي.

۵ــ په دې لاندې پوښتنو دې د لوست ارزونه وشي:

- مستشرق یا ختیځپوه چا ته ویل کېږي؟
- د پښتون قام او پښتو ژبې په باب د بهرنیو پښتو پوهانو ترسره کړي علمي او فرهنګي کارونه موږ ته څه ګټه لري؟
- بهرنیو پوهانو د کومو موخو او هدفونو له مخې زموږ د هېواد او استوګنو قومونو په باب څېړنې او مطالعات ترسره کړي دي؟
- د پنځو مشهورو بهرنیو پښتو پوهانو نومونه واخلئ.
- د پنځو بهرنیو پښتو پوهانو لیکلو کتابونو نومونه واخلئ.




زده کوونکي دې د کورنۍ دندې په توګه د کوم بهرني مستشرق (ختیځپوه) لنډ ژوند لیک ولیکي او یا دې د هغوی کوم اثر معرفي او په راتلونکي پښتو لوست ساعت کې دې هغه د ټولګیوالو په وړاندې ولولي.

# پندونه



ـ څوک د پند په معنا او مفهوم پوهېږي؟

ـ پند او نصیحت اورېدل او پرې عمل کول څه ګټه لري؟

ـ د چا پند باید واورېدل شي؟

د پند لغوی معنا نصیحت او په اصطلاح کې د پوهانو، عالمانو او مشرانو هغه ویناوې دي، چې د نیکو چارو د سرته رسولو لپاره هڅوني او له ناوړه کارونو څخه د منعه کولو لپاره پکې لازمې لارښووونې شوې وي. پوهان، او مشران دغه ډول ویناوې د خپلې علمي پوهې او د ټولنیز ژوند د تجربو په رڼاکې د خپل مکلفیت او مسؤولیت له مخې نورو ته کوي. په دې لوست کې د خوشحال خټک یو شعر لولو چې ډېر غوره نصیحتونه پکې راغلي دي.

خپل استاد و ما ته ووې څو پندونه
وې یې هره بدي کړه هغه بدمه کړه
که دې زړه دی چې بد نه مومې له چا نه
د شهوت په نغو ته مه څه شهوت اور دی
د هر چا سره د ښو سلوک بایده دی
د دنیا په مال د نیکو نوم حاصل کړه
د هر چا سره نرمي ملایمت کړه
هغه کار چې په نرمۍ تر سره کېږي
وهغو ته که قهر کړې روا دی
که دښمن دې ډیر زبون دی ځنې ډار کړه
د دښمن په تملق غلطي مه کړه
په خپلوانو باندې هومره خشم مه کړه
د پیپلو پاڼې خوره نه هغه پاستې
که عمل که وکالت که پیرو پلور دی
له بد خویه سره هیڅ بدي ته مه کړه
په هر کار کې چې در پېښ شي بیړه مه کړه
چې دې قول له چا وکړ نور یې مه کړه
په دروغ که په رښتیا وي سوګند مه خوره
د حرص سترګې مړې په قناعت کړه
د ښه دین لپاره علم دانش ښه دی
په جهان کې که مردان دي هم هغه دي
که دې ورور دی که دې زوی دی چې بدکار شو
هر چې شرعه فرمایي په هغه کار کړه
په هر کار به دې لاس بر وي په ځوانۍ کې
په ځوانۍ کې چې دې کار له لاسه ووځي

هر یو پند یې مرغلرې دي لالونه
چې له لاسه دې آزار شي د چا زړونه
اول ته پرېږده د بد و خصلتونه
په دا اور د ډیرو سوي دي کورونه
په بدۍ کې څه فایده ده کوم سودونه
تل جهان و چا ته نه پرېږدي مالونه
ګوندې وي چې په دا خپل کړې د چا زړونه
څه حاجت چې رساوه شي تر جنګونه
چې لري د بدو فعل بد خویونه
په یوه بخري وسوځي ښارونه
د رستم غوندې هم مړه دي په مکرونه
چې پردي در ځنې تښتي په ملکونه
چې یې خورې د نوکر یې په شرطونه
د هوښیار له لاسه ښه شي دا کارونه
غلیمانو لره بس دي خپل خویونه
په تلوار سره ورانیږي جوړ کارونه
تل په عهد قول ټینګ وي ښه میړونه
منافق دی چې ډیر ډیر خوري سوګندونه
چې په کور کې دې انبار شي نعمتونه
نه په دا چې پرې لوټې پردې مالونه
چې و سختي وته و نیسي ځانونه
په څپیړه یې کاږه کا ورمیږونه
مه عمل کوه په رسم په دودونه
که طاعت که عبادت که نور کارونه
په پیرۍ به دې ور نه رسي لاسونه



همیشه اوسه خوله پته لکه ناوې | چې ضرور شي هاله وکړه دوه حرفونه
که دې زړه دی چې دې عیب ښکاره نه شي | چاته مه شمیره د خلکو پټ عیبونه
چې توانیږې د هغه خبرې لاف کړه | او که نه په دروغ مه وهه لافونه

خدای هغه په دواړه کونه دي نمانځلي
چې په ورځ یې عدل و داد په شپه لمونځونه
(خوشحال خان ختک)

خوشحال خان خټک:

د پښتو ژبې پیاوړی شاعر، لیکوال، مؤرخ، سیاسي مشر او ملي مبارز و. په ۱۰۲۲ هـ .ق کال یې د پښتونخوا په سرای اکوړه کې د شهباز خان خټک په کورکې سترگې نړۍ ته غړولې وې. لږ و ډیر شپږ لسیزې یې د کلتور، فرهنگ او ننگ په ډگر کې قلم او توره غبرگ چلولي. په نظم او نثر یې ډیر کتابونه لیکلي او دپښتو ادب پانگې ته یې ستره بډاینه ور بخښلې ده. د ځینو آثارو نومونه یې دادي: د شعرونو دیوان (کلیات)، دستار نامه، بازنامه، طبنامه، فصلنامه، سواتنامه، بیاض (د پښتو تاریخ) فراقنامه، فالنامه، اخلاقنامه او نور .

خوشحال خټک په ۱۱۰۰ هـ ق کال د ۷۸ کلونو په عمر مړ دی.

د متن لنډیز:

د خلکو د زړو آزارول تر هرې گناه بد او ناوړه عمل دی، باید چې په کلکه ترې ځانونه وژغورل شي. له بد خوی څخه ډډه وکړئ او خپله شهواني غریزه په واک او اختیار کې ولرئ. له هر چا سره غوره سلوک او ښه چار چلن کوئ، د دنیا مال په داسې چارو ولگوئ چې نیک نوم پرې تر لاسه کړئ، له هر چا سره نرمي کوئ، دښمن په تملق او چاپلوسي مه تیروئ، له خپلوانو سرله ډیر ښه چلند کوئ، هر څوک چې د پوهې او هوښیارۍ خاوند وي هغه هره چاره په ښه توگه تر سره کولی

شي، په هیڅ کار کې له بیړې او تلوار کار مه اخلئ. هر چار په غور او تدبیر تر سره کوئ. پخپله ژمنه او قول وفا وکړئ، پر خپله برخه قناعت کوئ او له حرص څخه ځان وژغورئ. علم پوهه د خلکو د خیر ښیګڼې له پاره وکاروي، نه دا چې خلکو ته پرې زیان رسوئ.

کلک عزم او هوډ ولرئ او بد کاران د خپل عمل په سزا ورسوئ. هر کار د اسلامي شرعیت مطابق کوئ په ناوړه دود او دستور پسې مه ګرځئ، تل چوپه خوله اوسئ او بې ضرورته خبرې مه کوئ. که غواړې چې ستا عیب وساتل شي، لومړی ته د خلکو عیب پټ وساته او نور وته یې مه ښکاره کوه. هغه څه وایه چې تر وس او توان دې پوره وي، بېځایه لافې مه وهه، هغه څوک په دواړه جهانه بریالي وي چې عادل او لمونځ ګذار وي.




۱ــ د ښوونکي تر متن لوستنې او لازمو ځرګندونو وروسته دې زده کوونکي متن په چوپه خوله په ډېر غور او دقت سره ولولي. بیا دې زده کوونکي په نوبت سره د شعر پنځه پنځه بیتونه د ټولګي په وړاندې ولولي.

۲ــ دوه دوه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته را وبلل شي، یو دې د شعر یو بیت و وایي او بل دې د هغه معنا او مفهوم بیان کړي. دا لړۍ دې تر پایه تعقیب شي.

۳ــ زده کوونکي دې په څلورو ډلو و وېشل شي: یوه ډله دې په متن کې مفرد نومونه، بله دې جمع نومونه، بله دې ښځینه نومونه او څلورمه دې نارینه نومونه لست کړي. بیا دې د هرې ډلې استازی خپل لست کړي نومونه د ټولګي په وړاندې ولولي. ښوونکی دې د هرې ډلې د ترتیب کړي لست په سمون کې لازمه مرسته وکړي.

۴ـ زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته وبلل شي، چې د شعر عمومي مفهوم په خپلو الفاظو نورو ټولګیوالو ته ووایي.

۵ـ د دې لاندې پوښتنو په مطرح کولو دې د لوست ارزونه وشي:

- بد خویونه او خصلتونه کوم دي؟
- نرمي او نیک چار چلند څه ګټه لري؟
- په ژمنه او وعده وفا کول څه ته وایي؟
- حرص څه ډول عمل دی؟
- د دنیا مال او شته باید په کومو چارو ولګول شي؟
- د منافق خصلتونه کوم دي؟
- بې ځایه لافې شافې څه ډول عمل دی؟
- رښتیا ویل کومې ګټې او درواغ کوم زیانونه لري؟

۶ـ زده کوونکي دې وګومارل شي، چې دا لاندې متن (غوره مشورې) ولولي او د هغه مفهوم دې په خپلو الفاظو ولیکي:




زده کوونکي دې د کورنۍ دندې په توګه پر دې لاندې بیت:

هر چې شرعه فرمایي پر هغه کار کړه
مه عمل کوه په رسم په دودونه

څو کرښې ولیکي، د راتلونکي پښتو لوست په ساعت کې دې هغه د نورو ټولګیوالو په وړاندې ولولي.

## غوره مشورې

وايي چې يو څوک په سفر روانېدو. له پوه هوښيار سړي سره يې په دې باره کې مشوره وکړه، چې په سفر کې له چا سره ملګرى شي او له چا څخه ځان وساتي؟

هغه ورته وويل: ((په سفر کې له هغه چا څخه په ډېره ګرځه چې احسان نه مني، بې سببه غوسه ورځي. د قيامت د ورځې پروا نه لري. تګ، درواغجن، نفس پرست، بې حيا او په هر چا بدګومان کوي.))

بيا يې وويل: ((له هغه چا سره د دوستۍ او ملګرتيا هڅه کوه، چې نيکي نه هېروي. له دوستانو او ملګرو څخه په بده ورځ او تنګسه کې لاس نه اخلي. وينا او عمل يې دواړه ښه وي. کبرجن نه وي. عقل يې پر قهر زورور وي. بې له کومې طمعې او توقع سخاوت کوي. ادبناک وي. ملګرتيا او دوستي يې له ښو خلکو سره وي.))

سړی پر سفر ولاړ. په دغو مشورو يې عمل وکړ، چې له سفره راستون شو، د هغه په مشوره او پندونو ډېر خوښ و. خواته يې ورغی او کور ودانی يې ورته و وايه.

چې په خپله پوهه نه وي، ښه هغه دی
چې د بل سړي په پند پسې روان شي
په يوه بخري وسوزي درست کلی
په يوه خبر ولاړ واړه ايمان شي



# کانکور ازموينې ته چمتووالی خبرې اترې

ـ کانکور ازموينه د څه لپاره اخيستل کيږي؟

زده کوونکي په دولسم ټولګي کې د ثانوي دورې زده کړې له پای ته رسوي. وروسته د هيواد د لوړو زده کړو په مؤسسو پوهنتونونو، انستيټيوټونو او د ښوونکو د روزنې په مؤسسو (دارالمعلمينو) کې د لوړو زده کړو د سرته رسولو په موخه د کانکور آزموينه ورکوي. د هرې تعليمي مؤسسې د ټاکلو معياري نومرو د تر لاسه کولو په نتيجه کې هغې ته بريالی او لوړې زده کړې پکې کوي. په دې لوست کې مو د کانکور آزموينې ته د زده کوونکو د چمتووالی په اړه د خبرو اترو په بڼه ځينې ضروري لارښودې معلوما ت راوړې. دا معلومات به له تاسې سره آزموينې ته د چمتووالي او هم پر پښتو ژبه د خبرو کولو د ځواک په پياوړتيا کې مرسته وکړي.

جمال: جاویده که خدای کول ځو میاشتي وروسته به له مکتب نه فارغ شو.

جاوید: هو که دخدای رضا وه، خو ته را ته دا ووایه چې پوهنتون هم وايې او کنه؟

جمال: انصاف دې روزي شه پوهنتون څنګه نه وایم!

جاوید: آفرین! اوس خو چې پوهنتون يې نه وي ويلی څوک ورته بيخي وظيفه نه ورکوي.

جمال: ته څنګه؟ کانکور امتحان ته دې تیاری نیولی کنه؟

جاوید: هره ورځ مو په مکتب کې درس ويلی، نور نو ورته څنګه آمادګي ونيسم.

جمال: و ساده ګله، یوازې د ښوونځي په درس ویلو ته پوهنتون ته نه شي کامیابیدای.

جاوید: ولې؟

جمال: ځکه چې د مکتب درسونه، چې صنف تېر شي، نو بیا هیر شي، کانکور امتحان ته باید ښه درس وویل شي.

جاوید: ما خو بل چیرته درس نه دی ویلی تا ورته تیاری نیولی؟

جمال: که رښتیا درته ووایم زه په کور کی هره ورځ د تېرو ټولګیو درسونه له ځان سره تکراروم.

جاوید: د تیرو صنفونو درسونه خو ډیر زما بیرته له یاده وتي دي، ستا په یاد دي، خیر دی له ما سره هم مرسته وکړه!

جمال: جاویده انډیواله زما هم پوره یاد نه دي، بس هسې ځان مې مصروف کړی دی.

جاوید: ما اوریدلي دي د کانکور امتحان ډیر سخت وي، دا به څنګه کوو؟

جمال: زه هم دا څو ورځې کیږي چې همدغه سوچونه وهم چې څه به کوم؟

جاوید: هو رښتیا جمال په یاد مې شول.

جمال: څه شی، درسونه در په یاد شول؟

جاوید: نه، نه درسونه نه د جانداد ماما زوی منیر مې را په زړه شو.

جمال: نو په منیر باندې څه کوې؟

جاوید: و د خدای تعالی نیکبخته، هغه پرو سږکال له مکتب نه فارغ شو د کانکور امتحان یی ورکړ.

جمال: ښه! پوهنتون ته کامیاب شو؟

جاوید: کامیابېدل خو څه کوي په ډېرو لوړو نومرو د انجنیری پوهنځي ته کامیاب شو.

جمال: آفرین یې، څونه ښه، خیر داسې کوو چې خواته یې ورځو ورسره خبرې کوو.

جاوید: خو ما هم درته همدا ویلې چې ورځو څه لاره گودر به را وښیي.

جمال: ځه چې ځو.

منیر: او هو جمال او جاوید جانه سترې مه شئ، پخیر راغلئ؟

جمال، جاوید: خوار مه شې.

منیر: خیریت خو دی څنگه مو دیخوا پیښنه وکړه؟

جاوید: خیروخیریت دی، هسې له تا سره مو یوه مشوره کوله.

منیر: ولې نه سل مشورې خو به وکړو، راځئ دلته کښېنئ، ښه نو ووایئ څه خبره ده؟

جمال: منیر جانه موږ څو میاشتې وروسته له ښوونځي فارغیږو.

جاوید: بیا به له خیره سره د کانکور امتحان ورکوو.

منیر: دا خو به ډېره ښه شي.

جمال: خو موږ غواړو چې ته راته ووایې چې څه رقم درس دې ویلی و چې ښې نومرې دې واخیستې او انجنیري پوهنځي ته کامیاب شوې؟

جاوید: زموږ مطلب دادی چې امتحان ته دې څه ډول تیارې نیولی و، چې موږ هم هماغسې وکړو، که خدای مو کامیاب کړي.

منیر: اول خو داسې و چې ما د مکتب په دوران کې هره ورځ خپل درسونه



تکرارول.

جمال: ښه دا کار خو يو څه اندازه موږ هم کړی دی.

منير: دويم دا چې په خپل کلي کې مې له استاد نه د رياضي او فزيک درس وايه او د کانکور لارښود کتابونه هم مطالعه کوئ.

جاويد: دا کار خو تر اوسه پورې موږ نه دی کړی.

منير: نو تاسو کولی شئ يو استاد ته څه پيسې (فيس) ورکړئ چې درس درته ووايې.

جمال: ښه دا کار خو به موږ وکړو تا نور څه وکړل؟

منير: نور دا چې موږه د صنف تکړه او لايقه شاګردان به را غونډ شو، پټو ته به لاړو د يوي ونې لاندې به کيښناستو هر څوک چې په کومه برخه کې ښه پوهيده له نورو همصنفيانو سره به يې په هغه برخه کې مرسته کوله.

جاويد: څونه ښه، هلکه جماله ستا چې څه شی يادوي ماته به يې راښيې او زما چې څه ياد وي تاته به يې در ښيم.

جمال: بيخي سمه ده، منير جانه تا خو په کورس کې درس نه دی ويلی.

منير: ولي نه، مکتب په آخر کال کې مې د مکتب ټول کتابونه په کورس کې هم ولوستل، تاسو هم کولی شئ که وس يې ولرئ په کورس کې ځانونه شامل کړئ.

جاويد: هلکه جماله بالکل په کې ځان شاملو و.

جمال: هو دا کار به هم انشاءالله کوو، ښه منير جانه نور څه وکړو ؟

منير: بل دا چې د ورځې يو ساعت خو زه هم درسره درس ويلی شم، دا کومک به زه درسره وکم.

جاويد: که دا کار وکړې څو نه به ښه شي.

جمال: منير جانه کور دې ودان، چې موږ ته دې ښه لاره وښودله.

منير: هيڅ خبره نه ده، دا خو زما فرض دي چې له هر شاګرد سره مرسته وکړم.

جاويد: ښه نو منير جانه موږ به تر دې وروسته خپلو همصنفيانو سره هم درس وايو،



په کورس کې به هم ځانونه شامل کړو او تا ته به هم راځو، که خدای پاک مو کامیاب کړي.

منیر: انشاءالله هر څه به سم شي، په مخه مو ښه.

د متن لنډیز:

له دولسم ټولګي څخه تر فارغیدو وروسته زده کوونکي په پوهنتون کې د شاملیدو لپاره د کانکور د آزموینې پړاو تیروي، کوم زده کوونکي چې لوړې یا زیاتې نومرې وګټي هغه د پوهنتون غوره پوهنځیو ته، لکه د طب پوهنځی، د انجنیرۍ پوهنځي، د حقوقو او سیاسي علومو پوهنځي، د اقتصاد پوهنځي او یو شمیر نورو پوهنځیو ته لاره موندلی شي. هغه څوک لوړې او ښې نومرې د کانکور په آزموینه کې تر لاسه کولای شي چې د ښوونځی په دوره کې یې سم لوست او زده کړه کړې او نور اضافي معلومات یې په خصوصي کورسونو کې تر لاسه کړي وي، دا چې تاسو او ستاسو ټولګیوال پوهنتون ته لاره ومومئ غوره لاره داده چې د ښوونکي لوست ښه زده کړي، که چیرته په لوست کې ستونزې ولرئ په ګډه سره نوموړی لوست ولولئ. او هغه ستونزې د یو بل په مرسته حل کړئ.

او په ځانګړو کورسونو کې د ریاضي او ټولنیزو علومو په برخه کې نور معلومات هم تر لاسه کړئ، دا کار له تاسو سره د پوهنتون د کانکور په آزموینه کې ډېره ښه مرسته کولای شي.




۱ـ د خبرو په وخت کې دې زده کوونکي غوږ ونیسي چې د کلمو په سم تلفظ او د جملو په جوړولو پوه شي.

۲ـ زده کوونکي دې د خبرو اترو په وخت کې مشکل لغتونه یاد داشت کړي او د محاورې په پای کې دې له ښوونکي څخه د هغو پوښتنه وکړي.

۳ـ زده کوونکي دې له خبرو وروسته د پوهنتون د کانکور د آزموینې د ارزښت په هکله څو جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا دې څو تنه د خپلو ټولګیوالو په استازیتوب نومورې جملې ووایي.

۴ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د کانکور د آزموینې لپاره دې د تیارۍ نیولو په پړاو ونو خبرې وکړي.

۵ـ یو زده کوونکی دې د تختې مخې ته راشي، د څو غوره پوهنځیو نومونه دې پر تخته ولیکي، او نور زده کوونکي دې یې په خپلو کتابچو کې په جملو کې استعمال کړي، بل زده کوونکی دې په وار سره دغه جملې ټولګیوالوته ووایي.

۶ـ څو تنه زده کوونکي دي د ټولګي مخې ته ورشي دجمال او جاوید د خبرو څخه په الهام اخیستلو سره دې د لوړو زده کړو د ګټې په برخه کې خبرې اترې وکړي.

۷ـ څو زده کوونکي دې د هغو پوهنځیو په هکله خبرې وکړي چې خوښېږي یې او د خوښیدو لامل دې هم روښانه کړي.

۸ـ څو زده کوونکي دې ووایي کله چې له پوهنتون څخه د لیسانس دیپلوم تر لاسه کړي بیا به له خپلو زده کړو څخه په کومه برخه کې کار واخلي، او څرنګه کار به وکړي.

۹ـ ښوونکی دې یو زده کوونکي ته دنده ورکړي چې د تختې مخې ته لاړ شي د پوهنځیو نومونه دې پر تخته ولیکي، بل زده کوونکی دې تختې ته راشي د هر پوهنځي په اړه دې یوه جمله جوړه کړي، ښوونکی دې له نورو زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي چې تخته باندې لیکل شوې جملې سمې دي او که نه؟ او که چېرته دغه جملې غلطي او نیمګړتیا ولري خپله دې راشي او د هغو سمه بڼه دې ولیکي.




هر زده کوونکي دې د خپلې خوښې پوهنځي د ارزښت په اړه څو کرښې مقاله ولیکي، په راتلونکي یا بل پښتو درسي ساعت کې دې خپلو ټولګیوالو ته ووایي.

# هنري ـ ادبي نثر




ـ څوک نثر را پيژندلی شي؟
ـ ادبي نثر له عادي نثر سره څه توپير لري؟
ـ تاسې کيسې يا ادبي ټوټې لوستي، له نورو عادي ليکنو سره څه توپير لري؟

د نثر لغوي معنا شيندل، يا پاشل او تيتول دي او په ادبي اصطلاح هغه وينا يا ليکنه ده، چې د وزن او قافيې له قيد او بند څخه آزاده وي. پخوا نثرونه د بنې له مخې په ساده، متکلفو، مسجع او قافيه لرونکو ډولونو باندې ويشل شوي وو، خو مونږ اوسني نثرونه د بنې له مخې په دوو ستړو برخو: ساده يا عادي نثرونه او ادبي يا هنري نثرونو باندې ويشو. هنري يا ادبي نثرونه خپلې ځانګړنې لري، چې پر هغو له عادي او ساده نثرونو څخه را بېليږي. په هغو بنستيزو ځانګړنو کې، چې هنري يا ادبي نثر له ساده نثرونو څخه را بېلوي، هنري يا ادبي ارزښت دی. دلته په دې لوست کې ادبي يا هنري نثر در پيژنو او يوه ځانګړې بيلګه يې هم درته را وړو:

ادبپوهان اوسني نثرونه د بنې او شکل له مخې په دوو سترو برخو بېلوي:

۱ـ ساده نثرونه ۲ـ هنري ـ ادبي نثرونه

ساده نثرونه په ساده او روانه ژبه د فکر او نظر د څرګندولو او نورو ته د پوهې او معلوماتو د ور لیږدوني یوه ډېره ښه او اغیزمنه وسیله ده. په دې ډول نثرونو کې ټولې علمي، ادبي، تاریخي، سیاسي او ژورنالیستي لیکنې، څېړنیز او تحلیلي آثار راځي، خو هنري او ادبي نثرونه بیا خپلې بېلې ځانګړنې لري، چې پر هغو له عادي او ساده نثرونو څخه را جلا کیږي.

هنریت یا ادبي ارزښت هغه ستره ځانګړنه ده، چې ادبي او نورې عامې لیکنې سره بېلوي.

د هنري – ادبي نثر په لیکنه یا د نثري ادب په پنځونه او تخلیق کې د لیکوال ذوق، احساس او تمایل د یومطلب یا واقعیت د افادې او بیانولو لپاره اساسي نقش لري. لیکوال چې څه لیدلي، اوریدلي او احساس کړي او یا یې په ذهن او خیال کې تیریږي، په هنري ادبي ژبه بیانوي. هغه د تحقیقي او علمي لیکنو په څیر دلیل راوړلو ته اړتیا نه لري.

د ادبي- هنري نثر په پنځونه (تخلیق او لیکنه) کې د لیکوال د تخیل ځواک ډېره ستره ونډه لري. خو د لیکوالی په دغه ډګر کې له دغه ځواک (تخیل) څخه مرسته غوښتل یوازې او یوازې تر هغې لازم دي چې پیښې ته د باور وړ ښکلا او ځلا ورکړي. په هغې کې د منلو او کشش داسې جذبه او قوت را پیدا کړي چې د اوریدونکي یا لوستونکي زړه او ذهن ته ژر او په اسانی لاره و کړي.

ادب څیړونکو د ادبي هنري نثر لپاره څو ځانګړنې یا د جوړښت توکي ښودلي دي، چې دلته یې په ترتیب سره یادونه کوو:

لکه چې دمخه مو هم یادونه وکړه هنري ارزښت د ادبي نثر مهمه او بنستیزه ځانګړنه ده.

تخیل ددغه هنري ارزښت لومړنی او اساسي برخه جوړوي او همدغه تخیل دی چې یوې ډېرې عادي پیښې ته ښکلا ور بخښي، بڼه او لوري ورته ټاکي. ټولې ادبي پدیدې که



څه هم هغه حقیقي او ربښتیني پیښې وي، د لیکوال یا شاعر د تخیل په وړانګو د ښکلا پوړ ته رسیږي.

په ادبي – هنري نثر کې د لیکوال تخیل او تصور ارزښتمنه ونډه لري. لیکوال د خپل تخیلي ځواک په ملتیا د لیکوالی د هنر د فني مهارتو په وسیله په الفاظو او کلمو کې د منظر کښنې او صحنې جوړونې چارې په ډېر دقت سر ته رسوي او حالات یا واقعیتونه په الفاظو کې داسې انځوروي چې لوستونکی یا اوریدونکی فکر کوي چې هر څه په خپلو سترګو ویني او ځان کټ مټ په صحنه کې شامل احساسوي.

ساده ګي او رواني هم د هنري ـ ادبي نثرونو ځانګړنه ده. په پخوانی انشاء او لیکوالۍ کې له ذهن او محاورې څخه لرې کړ کیچنې او پیچلې کلمې د لیکنې لوړ معیار بلل کیده، خو اوس دغه ډول لیکنه هیڅکله ادبي معقولیت او مقبولیت نه شي تر لاسه کولی. څومره چې یوه لیکنه ساده، طبیعي، عام فهمه وي، لوړ ادبي ارزښت لري.

د وینا او خبرې زړه راښکون هم د هنري ـ ادبي نثرونو ډېره غوره ځانګړنه بلل کیږي، چې هغه د لوستونکي یا اوریدونکي پر ذهن د معنا او مفهوم د اغیز لپاره ډېره ګټوره ده. زړه راښکونکې خبره د لیکوال فکر او عواطف په ډېرې چټکۍ او اسانۍ لوستونکي یا اوریدونکي ته ور انتقالوي، د لیکوال او اوریدونکي د ذهني فضاء په پیوستون کې ډېره مرسته کوي.

د لفظ او معنا برابري هم د هنري – ادبي نثر یوه ځانګړنه ده. ادبي نثرونه باید داسې وي چې لوستونکی یا اوریدونکی یې له معنا پرته بل څه ته پاملرنه و نه کړي یا په بله وینا لیکوال باید په دغه ډول نثرونو کې الفاظ له معنا څخه قربان نه کړي او لیکنه یې باید داسې بڼه ونه لري چې معنا او مفهوم په الفاظو کې ورک شي.

نو ویلای شو: ادبي ـ هنري نثرونه د لیکنې د سبک له مخې له نورو عادي نثرونو سره جوت توپیر لري، تخیل، منظر کښنه، ساده ګي او رواني، د وینا او خبرې زړه راښکون یې د جوړښت ډیرې مهمې ځانګړنې دي، چې د لوستونکي ـ اوریدونکي معنوي او روحي تنده خړوبوي، ژورې اغیزې پرې ښندي، احساسات او عواطف یې لړزوي. د هنري ـ ادبي نثرونو ډېر ژانرونه او ډولونه زموږ په ادب کې دود دي، چې دهغو ډېرې غوره بیلګې او پیاوړي لیکوال لرو. په دغو ډولونو کې: لنډه کیسه، ناول یا

رومان، ډرامه، طنز، ادبي ټوټه، ادبي ليکونه، ادبي راپورتاژ، ادبي يونليک (سفرنامه) ادبي ځان پيښنې (خاطرات) ادبي ژوند ليک، تکل، ادبي انځور، فلمي سناريو او ننداريک (نمايشنامه) شامل دي. دلته يوه ادبي ټوټه د هنري ـ ادبي نثر د بېلګې په توګه راوړو:

## ژوند

د يوې چينې اوبه دي، څوک يې د زرو په جام کې څښي، څوک يې د خاورو په کنډولي کې.

هغه چې نه دا لري نه هغه، په لپه کې يې را اخلي.

په اوبو کې هيڅ فرق نشته، فرق په لوښو کې دی.

د شاه او ګدا فرق په لوښو کېږي.

د اوبو په خوند هغه څوک پوهېږي چې ډېر تږی وي.

هغه لاروی چې له بېديانه سترې ستومانه راځي او تنده يې ډېره زياته ده دا اوبه ډېر خوند ورکوي.

هغه دهقان چې په سره غرمه کې يوې کوي او خولې پرې را ماتې دي، دا اوبه د هغه د پاره ډېر لوی نعمت دی.

يو شپون چې له غره نه تږی را کوزېږي او په چينه باندې خوله ږدي د اوبو په خوند ډېر ښه پوهېږي.

يو بل سړی چې يخ سيوري ته په ارامه چوکۍ ناست دی، ښايسته صراحي يې له ښنګه ايښې دی له اوبو نه خوند نه شي اخيستلی.

هو! ده د لارويو او شپنو تند نه ده ليدلې.

په سره او ټکنده غرمه کې يې لوونه نه دي کړي، ځکه هغه تلوسه په ده کې نه شي پيدا کيدای. چا چې لوږه او تنده نه ده ليدلې، هغه د خوړو او اوبو پوره خوند هم نه دی ليدلی او د ژوند په کيف نه دی پوه شوی.

(د الفت غوره نثرونه)



گل پاچا الفت د میر سید پاچا زوی، په ۱۲۸۸هجری لمریز کال د لغمان په عزیز خان کڅ کې زېږېدلی و. د پښتو ټولنې غړی او څو کاله یې د دغې علمي او فرهنګي اداري د مشری (رياست) چارې هم تر سره کړي. د پښتو ژبې پیاوړی لیکوال، شاعر او کره کتونکی و. په لس ګونو علمي ادبي ځانګړي آثار او په سل ګونو مقالې یې په مطبوعاتو کې خپرې شوي دي. د ۱۳۵۶ لمریز کال د لیندۍ په ۲۶ نیټه وفات شوی دی. غوره نثرونه یې د ادبي ټوټو ټولګه ده، چې په ۱۳۳۶ لمریز کال د پښتوټولنې له خوا چاپ شوې ده.

د متن لنډیز:

اوسني نثرونه په دوه ډوله دي: ساده یا عادي نثرونه او هنري یا ادبي نثرونه.

ساده نثرونه په ساده او روانه ژبه نورو ته د فکر او نظر د څرګندولو یوه اغېزناکه وسیله ده، خو هنري نثر نورې ډېرې داسې ځانګړنې لري، چې د هغو په اساس له ساده او عادي نثرونو څخه را بېلېږي. په دغو ځانګړ نو کې تخیل، ساده ګي او رواني، د خبرې زړه راښکون، د لفظ او معنا برابري او نور شامل دي. په دغه ډول نثرونو کې معلومات د تخیل د ځواک د احساس او عاطفې په خُم کې رنګ او لوستونکي ته په داسې خوږه، رنګینه ادبي ژبه وړاندې کیږي، چې د هغه په زړه او ذهن ډېر ژر او په آسانه اغیزه کوي.

## فعالیتونه

۱ـ د ښوونکي د متن لوستنې او لازمو څرګندونو څخه وروسته دې زده کوونکي په خپل وار د متن یو یو پراګراف ولولي.

۲ـ زده کوونکي ګومارل کیږي چې متن په غور او دقت سره ولولي او په هغه کې فعلونه په نښه او لست کړي.

۳ـ هر زده کوونکی لست کړي فعلونه د ټولګي په وړاندې لولي، ښوونکی په متن کې د راغلیو فعلونو لېست توحید او بشپړوي او هغه د تختې پر مخ لیکي.

۴_ زده کوونکي ګومارل کيږي چې پر تخته ليکل شوي فعلونه په خپلو کتابچو کې وليکي او هغه د درې ګونو زمانو (حال، ماضي، استقبال) په لحاظ په مناسبو جملو کې استعمال کړي.

**فعل**: هغه کلمې ته وايي چې په يوه زمانه يا ټاکلي وخت د يو کار يا يوې پېښې په کېدو يا د يو حالت په را څرګندېدو دلالت کوي.

د زمانې په لحاظ د فعل ډولونه: په درې ډوله دي: تېر مهال (ماضی) اوسمهال(حال) راتلونکی مهال (مستقبل).

تېر مهال (ماضي) فعل: د يو کار تر سره کېدل يا د يوې پېښې کېدل په تېره زمانه کې بيانوي.

حال فعل: په اوسنۍ زمانه کې د يو کار يا يو حالت تر سره کېدلو دلالت کوي.

راتلونکی فعل: چې په راتلونکې زمانه کې د يو کار په سرته رسولو يا د يو حالت په بيانولو دلالت کوي.

۵_ زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته را وبلل شي چې د "ژوند" ادبي ټوټې مفهوم په خپلو الفاظو نورو ټولګيوالو ته ووايي.

۶_ په دې لاندې پوښتنو دې د لوست ارزونه وشي:

- اوسني نثرونه د بڼې له مخې په کومو سترو برخو وېشل شوي دي؟
- عادي نثرونه څه ډول نثرونه دي؟
- هنري _ ادبي نثرونه څه ډول نثرونه دي؟
- د هنري _ ادبي نثر سترې ځانګړنې او د جوړښت توکي کوم دي؟
- تاسې د ادبي _ هنري نثر کوم ډولونه پېژنئ؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کور کې په ادبي ژبه يوه لنډه کيسه، يا لنډه ادبي ټوټه، چې د هنري نثر ځانګړنې پکې جوتې وي، وليکي او د ښوونځي لوست په راتلونکي ساعت کې دې هغه نورو ټولګيوالو ته واوروي.

# د کندهار پښتو ادبي انجمن

ـ تاسې د ((ادبي انجمن)) یا ((ادبي ټولنې)) په معنا او مفهوم پوهېږئ، چې څه ته وایي؟

ـ د کوم ادبي فرهنګي انجمن او ټولنې له نوم او فعالیتونو سره آشنا یاست؟

ادبي انجمن، ادبي او فرهنګي ټولنې ته وایي، چې په هغې کې یوه ډله ادبیان (لیکوال او شاعران) را ټول او د ادبي ـ فرهنګي چارو په سر ته رسولو بوختېږي. زموږ په هېواد کې د دې هجري لمریزې پېړۍ له پیل نه تر اوسه پورې دغسې زیات شمېر ادبي ـ فرهنګي ټولنې را مېنځته شوي او ډېر د قدر وړ فرهنګي خدمتونه یې تر سره کړي دي.

یوه له دغو ادبي ـ فرهنګي ټولنو (انجمنونو) څخه د کندهار ادبي انجمن دی، چې په دې لوست کې یې درپېژنو.

د ۱۳۰۷ لمريز كال كورنې اړ دوړ له پای ته رسېدو وروسته، چې زموږ په هېواد كې د سياسي، اقتصادي او نورو ټولنيزو برخو تر څنگ د علم او فرهنگ د ودې او پر مختيا لپاره لارې چارې برابرې شوې، په پلازمينه كابل، هرات او كندهار كې ادبي انجمنونه جوړ او په عملي فرهنگي فعاليتونو يې پيل وكړ.

د ادبي انجمنونو د رامينځته كېدو په لړكې دكندهار پښتو ادبي انجمن په ۱۳۱۱لمريز كال تاسيس شو.

ددې ادبي انجمن په را مينځته كيدو كې د اروابناد وزيرمحمدگل خان مومند لوی لاس و.

نوموړی چې دغه مهال د كندهار تنظيمه چارو رييس و، ددغه انجمن د پرانيستو په غونډه كې يې د هغه موخې او دندې داسې وښودلې:

- په پښتو ژبه د يوې علمي، ادبي، اجتماعي او تاريخي مجلې خپرول.
- له بيلابيلو قبيلو څخه د پښتو لغاتو را ټولول او تدوين كول.
- د ښتو د چاپي او قلمي كتابونو را ټولول.
- د ادبي آثارو د تاليف او تصنيف لپاره د ليكوالو هڅونه.
- د پوهنې وزارت د ښوونځيو او مدرسو د درسي كتابونو پښتو ژباړې تهيه كول.
- له نورو ژبو څخه پښتو ته د عصري گټورو تاريخي، علمي، فني او نورو ډول ډول كتابونو را ژباړل.
- د انجمن د ليكوالو د استفادې لپاره د پښتو كتابونو د ملي كتابتون تاسيس، چې پر پښتو كتابونو سربېره به نور ډول ډول كتابونه هم ولري.
- د يوې ادبي مجلې په خپرولو پښتو ژبې ته د ټول ملت پام را اړول.

ددغه ادبي انجمن په لومړيو غړيو كې د مولوي عبدالخالق واسعي، محمد اعظم ايازي، محمد عثمان باركزی، حاجي عطا محمد خان، ملا بهاءالدين اسحق زی، حاجي عبدالغفور خان خروټی، مولوي قيام الدين خان خادم، محمدگل خان لگيا (وروسته بيا نوري) عبدالغفورخان شرر او محمد نسيم نوري نومونه د بيلگې په توگه يادولی شو.



د کندهار پښتو ادبي انجمن د خپلې خپرنيزې تګلارې له مخې په بېلابېلو برخو کې فعاليت کاوه.

څرنګه چې د انجمن د اساسنامې لومړۍ ماده د يوې علمي، ادبي او تاريخي مجلې د خپرولو په باب وه، نو ځکه يې په هماغه لومړيو کې د ۱۳۱۱لمريز کال د مرغومي د مياشتې په پنځلسمه نېټه د ((پښتو)) په نامه يوه مجله خپره کړه، چې د انجمن د له منځه تللو تر پای پورې يې خپلو خپرونو ته دوام ورکړ. دغې مجلې د خپل پنځه کلن خپرنيز ژوند په بهير کې ډيرې علمي، ادبي، تاريخي، فولکلوري، ژبنيو څېړنو او اقتصادي مسايلو په باب په زړه پورې مقالې او د ادبي هنري نثرونو او د غوره او ښکليو شعرونو ډيرې ښې بيلګې خپرې کړې دي.

د ادبي انجمن له خوا به ډيرې په زړه پورې طرحي مشاعرې هم جوړيدلې او شعرونه به يې د مجلې له لارې خپريدل.

د کندهار ادبي انجمن د خپلو فرهنګي فعاليتونو په لړ کې يو شمير کتابونه هم چاپ او خپاره کړي دي، لکه: ((معلم پښتو)) (دوه ټوکه)، چې لومړی ټوک يې په ۱۳۱۳او دويم ۱۳۱۴لمريز کال چاپ شوی دی، ((پښتو خبرې)) (۱۳۱۵ لمريز)، ((پښتو ښوونکی)) چې ليکوال يې محمدعثمان او د چاپ کال يې ۱۳۱۶لمريز دی، او ځينې نور.

د کندهار ادبي انجمن له يو شمير ليکوالو غړو سره په ۱۳۱۴ لمريز کال له کندهار څخه کابل ته را وليږديد او د پوهنې په وزارت پورې اړوند شو. تر ۱۳۱۶ لمريز کال يې دلته په کابل کې فرهنګي او خپرنيز فعاليتونه درلودل، پښتو مجله او کتابونه يې خپرول. په دغه کال له کابل ادبي انجمن (چې دمخه په ۱۳۰۹ لمريز تاسيس شوی و) سره يو ځای او له دواړو څخه ((پښتو ټولنه)) جوړه شوه، چې تر ۱۳۵۷ لمريز کال پورې يې د هېواد د لوړ علمي او فرهنګي مرکز په توګه د پښتو د ژبې د ودې او پرمختيا لپاره نه هېريدونکې او د ستايينې وړ خدمتونه وکړل.

د کندهار ادبي انجمن په خپل وخت کې د پښتو ژبې او ادبياتو د ودې او د پښتو ليکوالو د روزنې او پالنې په لار او چار کې ډيره ارزښتناکه ونډه لرلې او ډير غوره علمي، فرهنګي خدمتونه يې تر سره کړي دي.



د متن لنډيز:

دکندهار ادبي انجمن د وخت د دولت له خوا د يوې علمي، ادبي او کلتوري ادارې په توګه په ۱۳۱۱ لمريزکال په کندهار کې تاسيس شو. يو شمير ليکوال او شاعران پکې د علمي او ادبي چارو د سر ته رسولو لپاره و ګومارل شول. دغه ادبي انجمن تر ۱۳۱۴ لمريزکال پورې په کندهار کې د پښتو ژبې او ادبياتو د ودې او پر مختيا لپاره ډير ارزښتمن کارونه وکړل، بيا کابل ته راوليږدول شو. او د پوهنې د وزارت په چوکاټ کې يې علمي فعاليت پيل کړ. دوه کاله وروسته له کابل ادبي انجمن سره، چې د مخه پر ۱۳۰۹ لمريزکال کې تاسيس شوی و، يو ځای شو او ((پښتو ټولنه)) ور څخه را مينځته شوه، چې تر ۱۳۵۷ لمريزکال پورې يې د لوړ علمي ـ فرهنګي مرکز په توګه د پښتو ژبې او ادب د ودې او پر مختيا لپاره ډېر ارزښتمن خدمتونه وکړل او بيا يې پر بنسټ د افغانستان د علومو اکاډمي جوړه شوه.

## فعاليتونه

۱ـ د ښوونکي د متن تر لوستنې او لازمو ځرګندونو وروسته دې زده کوونکي متن په چوپه خوله ولولي.

۲ ـ زده کوونکي دې په وار سره د متن يو يو پرګراف د نورو ټولګيوالو په وړاندې ولولي. ښوونکی دې د اړتيا په وخت کې مرسته وکړي.

۳ـ زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته را وغوښتل شي چې د متن مفهوم په خپلو الفاظو نورو ټولګيوالو ته ووايي.

۴ـ زده کوونکي دې وګومارل شي چې متن په چوپه خوله په ډير غور او دقت سره ولولي او په هغه کې خاص نومونه په نښه کړي او بيا دې هر يو په نښه او لست کړي نومونه د ټولګي په وړاندې ولولي.

**خاص نوم**: هغه نوم دی چې یو ځانګړی وګړی (شخص) څيز یا ځای نوموي،
لکه: کابل، کندهار، احمد شاه بابا او نور.

۵_ ښوونکی دې د زده کوونکو د خاص نومونو له لست څخه یو مجموعي بشپړ لست د تختې پر مخ ولیکي. لومړی دې له زده کوونکو څخه و غواړي چې که د دغو اشخاصو او ځایونو څخه د کوم یو په هکله معلومات لري هغه دې د ټولګیوالو په وړاندې و وایي.

بیا دې ښوونکی د ځینو دغو مشهورو شخصیتونو په اړه زده کوونکو ته لازم معلومات ورکړي.

۶_ ښوونکی دې پر تخته دا لاندې کلمې ولیکي، دوه، دوه زده کوونکي دې تختې ته وروبولي، چې یو یې معنا او بل یې په مناسبه جمله کې استعمال کړي.

۱_ پرمختیا ۲_ مهال ۳_ هڅونه ۴_ تګلاره ۵_ بهیر ۶_ لړ
۷_ په زړه پورې ۸_ ټوک ۹_ روزنه ۱۰_ ونډه

۷_ پر لوست د زده کوونکو د زده کړې د کچې د پوهېدنې لپاره دې په دې لاندې پوښتنو سره ارزونه وشي:

- د کندهار ادبي انجمن څه وخت او چیرې جوړ شو؟
- د کندهار ادبي انجمن د جوړېدو موخې او هدفونه څه وو؟
- د کندهار ادبي انجمن په جوړېدو کې چا لوی لاس درلود؟
- د کندهار ادبي انجمن کوم فعالیتونه تر سره کړي دي؟
- د کندهار ادبي انجمن څه وخت کابل ته راغی او دلته یې چیرې فعالیت کاوه.
- د کندهار ادبي انجمن له کوم ادبي انجمن سره یو ځای شو او په نتیجه کې یې کوم علمي _ ادبي مرکز را مینځته شو؟

- د کندهار ادبي انجمن کوم کتابونه چاپ کړي دي؟
- د کندهار ادبي انجمن کومه مجله خپروله؟
- د کندهار ادبي انجمن څه وخت له منځه ولاړ؟

۸ـ ښوونکی دې په ګرامري لحاظ دا لاندې ناسمې جملې پر تخته ولیکي او له زده کوونکو څخه دې وغواړي، چې د هغو سمه بڼه په خپلو کتابچو کې ولیکي:

- د انجمن کندهار ادبي خپروله مجله پښتو.
- کندهار انجمن ادبي خدمات وکړ پښتو ته ډېر.
- انجمن ادبي کابل له کندهار انجمن ادبي سره شو یو ځای.
- پښتو ټولنه شوه جوړه د یو ځای کېدو د کندهار انجمنونو او څخه کابل.




زده کوونکي دې په خپله سیمه کې د کومې ادبي فرهنګي ټولنې او یا د هېواد د کومې ادبي ـ فرهنګي ټولنې په باب، چې دوی معلومات لري، څو کرښې ولیکي او د پښتو لوست په راتلونکي درسي ساعت کې دې یې ټولګیوالو ته ولولي.

د نورو په عیبونو سترګې پټې کړئ، پر ځای یې خپلو عیبونو ته پام وکړئ.
هغه فرصت چې د نورو د عیبونو په سپړلو کې تېروئ، په هغې کې خپل عیبونه اصلاح کړئ.

# د شاعر زړه



ـ د شاعر په اړه څه پوهېږئ؟ څه ځانګړنې لري؟

ـ شاعر له عامو خلکو سره څه توپير لري؟

شاعر په عامه معنا هغه چا ته ويل کيږي چې شعر وايي. شاعر که څه هم په ټولنه کې له نورو خلکو سره يو ځای اوسي، خو احساس او ادراک، فهم او ځيرتيا يې له نورو سره توپير لري. هغه وړتيا، چې د شعر جوړولو فطري استعداد ور په برخه کړي د هغې په اساس په ټولنه کې ډېر داسې څهويني او احساسوي، چې نور يې هغسې نشي ليدی يا يې نه ورپام کېږي. نو له همدې امله شاعر ډېر دقيق، باريک بين، کره کتونکی، ځيرک او حساس وي. د ټولنې بدمرغی او ناوړتياوې ډېر ژر پيژني او هغه په پوره جرأت سره نوروته ښيي او د ژغورنې لار هم په ګوته کولی شي. د شاعر هيلې او آرزوګانې هم له نورو عامو خلکو څخه لوړې، د احساس او عاطفې ځواک يې هم له نورو پياوړی وي. دلته په دې لوست کې د((شاعر زړه)) تر سر ليک د استاد قيام الدين خادم يو شعر لولو، چې د اولس او ټولنې په وړاندې، د يو شاعر لوړې هيلې، ارمانونه او آرزوګانې پکې ډېرې ښې انځور شوې دي.

ډک له ارمانونو دی　　نه پوهیږم څه غواړي؟!
راز د آسمانونو دی　　نه پوهیږم څه غواړي؟!

* * *

غم د ټول جهان کوي　　نه پیژني ځان خپله
لوی تر جهانونو دي　　نه پوهیږم څه غواړي؟!

* * *

خلک دي چې مړه پسې　　دي ورته نظر نه کا
ما نه په سوالونو دی　　نه پوهیږم څه غواړي؟!

* * *

سود یې په پیسو نه شي　　کار یې په تنګو نه شي
تیر له دې کارونو دی　　نه پوهیږم څه غواړي؟!

* * *

دغه د پیسو عتان　　دا د منصبو غټان
دوی ته په فکرونو دی　　نه پوهیږم څه غواړي؟!

* * *

سپړي هغه غوټې چې　　چا نه دي سپړلې هیڅ
ډوب یې په چرتونو دی　　نه پوهیږم څه غواړي؟!

* * *

غورځي، پرځي، ګرځي تل　　نه غواړي آرام د ځان
تل په عذابونو دی　　نه پوهیږم څه غواړي؟!

* * *

وایي چې دوزخ زموږ　　ولې دي جنت نه شي
تنګ له دې غمونو دی　　نه پوهیږم څه غواړي؟!

* * *



کله په کتاب کې ډوب کله په سحاب کې ډوب
کله په شعرونو دی نه پوهیږم څه غواړي؟!



دا جهان خو نه غواړي بل له دې نه ښه غواړي
زړه دی د شاعر دغه وګوروئ چې څه غواړي؟!
(قیام الدین خادم)

**قیام الدین خادم**: د ملا حسام الدین زوی، په ۱۳۲۵هجري قمري کال د ننګرهار ولایت په کامه کې زېږېدلی، پیاوړی عالم، کره کتونکی، لیکوال، شاعر او مؤرخ و.

تر پنځوسو زیات ځانګړي چاپ او نا چاپ آثار لري او په سلګونو مقالې یې د هیواد په مطبوعاتو کې خپرې شوې. د ۱۳۵۸ لمریز کال د سنبلې پر شپږمه نیټه په کابل کې مړ او په کامه کې پخپله پلرنۍ هدیره کې خاورو ته وسپارل شو.

په منظومو آثارو کې یې د مرغلرو امیل، ځاروان او نصوص الحکم او په منثور و آثارو کې یې خیالي دنیا، نوې رڼا، نوی ژوندون د بېلګې په توګه د یادونې وړ دي.

د متن لنډیز:

په دې شعر کې د شاعر د لوړو هیلو او ارمانونو انځور په ډېر ښه ډول وړاندې شوی او په ګوته شوی، چې یو رسالتمند او ژمن شاعر د ځان نه، بلکې د خپلې ټولنې، هیواد او ان دا چې د ټول انسانیت او بشریت په فکر کې وي. د مادي نړۍ عظمت او جلال ورته هېڅ وي او تل یې په معنویت کې فکر کوي. د ستونزو د حل داسې لارې ښیي چې نور عام وګړي یې نه پېژني او نه یې ورته پام وي. د ځان د هوساینې نه، بلکې د نورو د هوساینې او سوکالۍ په فکر کې دی او یو داسې سپېڅلی ژوند او نړۍ غواړي چې د مادیت پر ځای د معنویت پر ستنو او بنسټونو ولاړه وي. له ده سره تل د خلکو د نیکمرغۍ او سوکالۍ فکر وي. شاعر د خلکو درنځونو او بد مرغیو د پېژندلو او هغو ته د حل لارو د پیدا کولو په هڅه او لټه کې دی.



## فعالیتونه

۱ـ ښوونکی دې پر زده کوونکو په نوبت سره د شعر یویو بند یا کړۍ ولولي. له زده کوونکو سره دې د اړتیا په وخت کې مرسته وکړي.

۲ـ له زده کوونکو څخه دې وغواړي چې متن له ځان سره په ډېر غور او دقت ولولي او ستونزمنې کلمې یا لغتونه دې په نښه کړي.

۳ـ زده کوونکي دې په نښه کړې ستونزمنې کلمې په ترتیب سره ووایي او ښوونکی دې د هغو توحید شوی لست د تختې پر مخ ولیکي. هغه ستونزمنې کلمې او لغتونه چې ځینې زده کوونکي یې حل او معنا کولای شي، پر هغو دې یې معنا او پر تخته ولیکي. نورې پاتې دې پخپله معنا او پر تخته ولیکي.

۴ـ زده کوونکي دې وګومارل شي چې د لغتونو معناوې پخپلو کتابچو کې ولیکي.

۵ـ دوه ـ دوه زده کوونکي دې پورته کړای شي، یو دې د شعر یوه کړۍ لولي او بل دې د هغه معنا او مفهوم ټولګیوالو ته بیانوي، دا لړۍ دې په ټول ټولګي کې تر پایه پلې کړای شي. ښوونکی دې د معنا په سمون او اصلاح کې د اړتیا پر وخت مرسته وکړي.

۶ـ ځینې زده کوونکي دې په خپله خوښه پورته کړای شي چې د ټول شعر د مضمون او محتوا په اړه، چې څومره پوهیدلي، هغه دې نورو ټولګیوالو ته ووایي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د کورنۍ دندې په توګه خپلې هغه هیلې او اَرمانونه، چې د هېواد، خلکو او ټولنې ته یې د خدمت په لاره کې لري، د هغو په هکله دې څو کرښې ولیکي او د پښتو لوست په راتلونکي درسي ساعت کې دې یې نورو ټولګیوالو ته واوروي.

# د پښتو ولسي ادبیات

ـ تاسې په خپل کور و کلي یا سیمه کې داسې څوک پیژنئ چې په لیک او لوست نه پوهیږي، خو شعرونه وایي؟

ـ په کور و کلي کې مو له چا څخه داسي کیسې او نکلونه اوریدلي دي، چې نکل چیان پکي منځ تر منځه نارې یا غږونه هم وایي؟

ـ داسی څوک مو لیدلي چې پخپلو خبرو کې متلونه اصطلاحات او محاورې کاروي؟

هره ژبه دوه ډوله ادبیات لري: یو یې هغه ادبیات دي چې لیکلې بڼه لري او د ټولني د با سواده وګړو له خوا را مینځته شوي وي او په کتابونو کې خوندي دي. بل هغه ادبیات دي چې د ټولنې د نالوستو یا (بې سواده) یا عامو وګړو له خوا را منځته شوي او په شفاهي توګه له یوه نسل ته لیږدیدلي وي، دې ډول ادبیاتو ته ((ولسي ادبیات)) وایي . پښتو ژبه ددغه ډول ادبیاتو له اړخه ډېره غني ده، په دې لوست کې یې درپېژنو.

په عمومی ډول د ولسي ادب د پیژندنې لپاره ویلای شو: ولسي ادب هغه ادب دی، چې د یوې ټولنې د عامو ولسي یا په بله وینا د نا لوستو وګړو له خوا را مېنځته شوي وي.

دا چې د یوې ژبې ټول لیکلي (تحریري) او نا لیکلي (شفاهي) منظوم او منثور هنري آثار ادبیات ګڼل کیږي، نو همدې پیژندنې ته پاملرنه ولسي ادبیات د هر ملت او ولس د ادبیاتو په تاریخ کې ډیره ارزښتمنه ونډه او نقش لري او دهغو له یادونې او مطالعې پرته د یوې ژبې د ادبیاتو مطالعه نیمګړې ګڼل ګیږي.

ولسي ادبیات چې د ((فولکلوري ادبیاتو))، ((شفاهي ادبیاتو)) او ((عامیانه ادبیاتو)) په نومونو هم یادیږي، معمولاً شفاهي بڼه لري، په هغو ټولنو او ولسونو کې ډیر زیات او پیاوړي وي چې د لیک لوست (سواد) خپرېدنه پکې ډېره نه وي عامه شوي او وګړي یې د سواد له نعمت څخه بې برخې وي.

زموږ هېواد او ټولنه هم چې د ځانګړو سیاسي، ټولنیزو ، اقتصادي ، فرهنګي او جغرافیوي عواملو له مخې د دغسې ټولنو او ولسونو دکتار په سر کې راځي، نو ځکه پکې د لیکلو ادبیاتو په پرتله ددغه ډول (ولسي) ادبیاتو پانګه درنه ده.

دلته ددې خبرې یادونې ته اړتیا لیدل کیږي، چې زموږ په هېواد کې بېلا بېل قومونه استوګنه لري، ددغو اوسېدونکو قومونو د اولسي یا شفاهي او فولکلوري ادبیاتو څومره والی او څرنګوالی سره لږو ډېر توپیر لري.

پښتانه د افغانستان د اوسېدونکو قومونو د یوې لویې برخې په توګه د ولسي یا نالیکلو او فولکلوري ادبیاتو له ډېرې سترې پانګې څخه برخمن دي، چې دلته یې د ولسي ادبیاتو په عمومي ډولونو او ځانګړنو ډېر لنډ بحث کوو.

د پښتو ولسي ادبیاتو د پښتنو د هنري استعدادونو څرګندوی او ددغه ولس او قوم د ټولنیز ژوند هېنداره ده. د ادبیاتو دغه برخه د ولس د نورو ایجاداتو په څېر د اړتیاوو له مخې را منځته شوې او د خلکو له ژوندانه سره یې اوږه په اوږه یون کړی دی او د پښتون ولس د ژوندانه خواږه، ترخه ، پوهې او تجربې، لوړې او ژورې، ښې او بدې





يې پخپله پراخه لمنه کې را نغښتې او خوندي کړي دي.

پښتون ولس دزمانې په اوږده تاريخي بهير کې خپلې هيلې او ارمانونه، خوښۍ، غمونه او رنځونه، د مينې احساسات او جذبې او لنډه دا چې د ټولنيز ژوندانه ټول کړه وړه په دغو ولسي ادبياتو کې خوندي او منعکس کړي او په شفاهي توګه يې له يوه نسل څخه بل ته لېږدولي دي.

د لېږدونو په دغه بهير کې د پښتو ولسي ادبياتو ډېره زياته برخه هېره شوې او ورکه شوې ده، يا په بله وينا: د دغو ولسي ادبياتو د راوايانو په له منځه تللو سره د دغه وخت ويل شوي او را منځته شوي د ولسي ادب بېلا بېل ډولونه هم له منځه تللي دي، نو له همدې امله موږ د دغو ادبياتو ډېرې لرغونې نمونې اوس په لاس کې نلرو، بيا هم د ولسي ادب هغه ډېره لږه برخه چې پاتې ده او له بېلا بېلو لارو له هېرېدنې او ورکېدنې ژغورل شوې او تر موږ رارسيدلې ده، د هغو بېلا بېلو ډولونو ته په کتنې سره ويلای شو چې: د پښتنو عامو ولسي وګړو که ليک لوست نشو کولی او د سواد له نعمت څخه بې برخې وو، خو ډېر پياوړی هنري ذوق او احساس يې درلود، چې هغه يې ددغو ادبياتو په بېلابېلو کالبونو کې ورځای کړی او په ډېره په زړه پورې بڼه بيان کړي دی او د ولسي ادب دا موجوده د نظم او نثر بېلابېل ډولونه يې را منځته کړي دي.

دلته د پښتو د غو موجودو ولسي ادبياتو د بېلا بېلو ډولو يوازې نومونه در پېژنو:

ولسي ادبيات په لومړي سر کې په دوو لويو برخو بېلېږي:

منظوم ولسي ادبيات او منثور ولسي ادبيات

## منظوم ولسي ادبيات:

منظوم ولسي ادبيات په دوه ډوله دي: عام ولسي شعرونه (سندري) او خاص ولسي شعرونه (سندري).

لومړی ـ عام ولسي شعرونه: هغه دي چې ويناوال او شاعر يې معلوم نه وي. دا لاندې بېلابېل ډولونه لري:



(۱)د مېندو سندرې (۲) د ماشومانو سندرې (۳) منظوم چیستانونه (۴) د اتڼ نارې (۵)سروکي (۶) لنډۍ (۷) د نکلونو نارې (۸) کاکړۍ غاړې (۹) تاریخي نارې (۱۰) منظوم فالونه (۱۱) منظوم متلونه او نور.

دويم_ خاص ولسي شعرونه: هغه شعرونه يا سندرې دي، چې ويناوال يا شاعران يې معلوم او د ولس پېژندل شوي خلک دي او ددغو شعرونو په وروستيو برخو کې خپل نومونه راوړي. دغه ډولونه لري:

(۱) رباعي (مقام) (۲) غزل (۳) چاربيته (۴) لوبه (۵) بگتۍ (۶) داستانونه.

## منثور يا نثري ولسي ادبيات:

ولسي نثري ادبيات هغه اوږدې او لنډې خوږې او پخې ويناوې دي، چې د ولس په منځ کې را مينځته شوي، ويناوال يا اصلي رامنځته کوونکي يې نه دي معلوم او د ټول ولس گډ مال دی. دا لاندې ډولونه لري:

(۱)ولسي نکلونه او حکايتونه (۲) وړې کيسې (۳) منثور متلونه (۴) منثور چيستانونه (۵) اصطلاحات او محاورې (۶) تکيه کلامونه (۷) تشبيهات او استعارې (۸) رمزونه او کنايې (۹) دعاوې او ښېراوې (۱۰) ټوکې ټکالې (۱۱) روايات (۱۲) د ماشومانو لپاره کيسې او نکلونه.

## د ولسي ادبياتو مهمې ځانگړنې:

۱_ منظوم ولسي ادب د عربي ادب د عروضو او وزنونو تابع ندي، خپل ځانگړې ملي ولسي وزنونه لري.

۲_ د موضوع په لحاظ ولسي ادب د کليوالي ولسي ژوند، ټولنيزو، اقتصادي او کلتوري اړيکو ځرگندونکی او منعکس کوونکی دی.

۳_ د ولسي ادبياتو ژبه ساده، سوچه، روانه او دخلکو له ورځنۍ محاورې سره



برابره ده.

۴ـ ډېرې مبالغې او له حقیقت نه لیرې خبرې او تصنع پکې نه لیدل کېږي.

۵ـ په دې ادبیاتو کې د پېښو بهیر او د ژوند څېرې کټ مټ انعکاس مومي.

۶ـ ولسي ادبیات د ټولنیزو ارزښتونو په لرلو سره له لوړو هنري ارزښتونو څخه هم برخمن دي، هغه د پښتون ولس د لوړ هنري ادبي ذوق ډېره ښه څرګندويي او استازيتوب کوي.

۷ـ په ولسي ادبیاتو کې ښکلا او رښتینولي په ډېره ساده او اسانه بڼه ځان څرګندوي.

۸ـ دا چې ددغو ادبیاتو زیاته برخه دنالوستو او بې سوادو وګړو ذهن او فکر محصول ده او را منځته کوونکي یې په ولس کې اوسېږي، دا ولس د ټولو مسلطو کلتوري او ټولنیزو ارزښتونو او اړیکو تابع دي.

د متن لنډیز:

ولسي ادبیات هغه ادبیات دي چې د ټولنې دعامو او نالوستو وګړو له خوا رامنځته شوي وي او له يو نسل څخه بل ته په شفاهي ډول لېږدېدلي او دا لړی په ټولنه کی پر مخ روانه ده.

پښتو ژبه د دغه ډول ادبیاتو له مخې ډېره بډایه ده. دا ادبیات په منظومو او منثورو برخو وېشل کېږي، چې هره برخه یې ډېر ډولونه لري. ولسي ادبیات خپلې ځانګړنې لري، چې د هغو له مخې له لیکلو یا تحریري ادبیاتو څخه رابېلېږي. دا ادبیات چی په ولس کې خواره واره پراته دي باید، چې را ټول، له هېرېدو او ورکېدو څخه وژغورل شي.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکی دې د ښوونکي له متن لوستو او لازمو توضیحاتو وروسته متن په چوپه خوله ولولي.

۲ـ زده کوونکي دې په نوبت سره د ټولګي مخې ته وبلل شي، چې د متن مفهوم په خپلو الفاظوکې نورو ټولګیوالو ته ووایي.

۳ـ زده کوونکي دې پر دوو ډلو جلاکړل شي. د یوې ډلې یو یو زده کوونکی دې د تختې پر مخ د منظوم ولسي ادب یو یو ډول ولیکي او بیا دې د بلې ډلې یو یو د ټولګي مخې ته ور وبلل شي چې د منثور ولسي ادب د یو یو ډول نوم ولیکي.

۴ـ زده کوونکي دې وګمارل شي چې متن په غور ولولي په هغه کې دې صفتونه په نښه کړي او بیا دې هر زده کوونکي په نښه کړي صفتونه د نورو ټولګیوالو په وړاندې ولولي، ښوونکی دې د اړتیا په وخت کې مرسته وکړي.

**صفت**: په خپلواک ډول څه نه نوموي، خو د یو څه حالت او څرنګوالی ښیي. یعنې دا چې صفت د نوم معنا څرګنده او روښانوي، لکه: روغ، ناروغ، ښکلی، بدرنګ، غښتلی، کمزوری، تور، سپین او نور.

۵ـ زده کوونکي دې پخپل وار سره د ټولګي مخې ته ور شي، چې یوه یوه لنډۍ او یا متل ووایي. نور زده کوونکي دې هغه په خپلو کتابچو کې ولیکي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکی دې پخپله خوښه یوه فولکلوري کیسه، یا لس لنډۍ، یا لس متلونه او یا هم د کوم ولسي شعر بشپړه بیلګه ولیکي په راتلونکي پښتو لوست ساعت کې دې هغه د ټولګیوالو په وړاندې ولولي.



# سید شمس الدین مجروح




منتخب شعرونه
د
سید شمس الدین
«مجروح»
د پښتو ټولنې له خوا چاپ شو
حمل ۱۳۳۷ ه‍ ش

ــ تاسو د پښتو په اوسینو نومیالیو، شاعرانو او لیکوالو کې د چا نومونه اورېدلي او د هغو کتابونه مو لوستي دي؟

د پښتو ادب په معاصره دوره کې ځو ډېر نومیالي لیکوال او شاعران لرو، چې هغوی د پښتو ژبې او ادب د ودې او پرمختیا په لاره کې ډېر ارزښتناک خدمتونه کړي او د منظومو او منثورکتابونو په لیکلو يې د پښتو ادب پانګه بډایه کړې ده. له دغو نومیالیو لیکوالو او شاعرانو څخه یو هم سید شمس الدین مجروح دی، چې پدې لوست کې يې در پېژنو.

د کونړ د دنګو غرونو د لمنو په یوې ښېرازې او ښکلې درې کې د شینکوړک کلی پروت دی. دغلته یوه سیده پښتنه کورنۍ اوسېدله. د همدې درنې کورنۍ د غړي سید حضرت شاه نومي (چې د تیر ګرو په پاچا صاحب مشهور و) په کور کې پر ۱۳۲۳ هجري قمري کال یو ماشوم سترګې نړۍ ته وغړولې، کورنۍ یې پرې سید شمس الدین نوم کېښود.

دغه ماشوم به د درې یا درې نیمو کلونو و چې پلار یې مړ شو، مور یې، چې یوه لوستې او هوښیاره مېرمن وه، په ډېره پاملرنه یې د خپل زوی پالنه او روزنه وکړه، چې را لوی شو په کور کې یې له خپلې مور او نورو کورنیو استادانو څخه دیني علومو زده کړه پیل کړه. د دیني او مروجوادبي علومو نثر او نظم ځینې کتابونه یې ولوستل او بیا یې د علومو لوړې زده کړې او ژورې مطالعې ته مخه کړه. د ژوند تر پایه یې دا مینه د زړه په وینه او پوره ذوق وپالله. پیاوړی لیکوال، خوږ ژبی شاعر، سیاست پوه، حقوق پوه او د لوړو تولنیزو او فلسفي افکارو څښتن شو. د ځان لپاره یې د ((مجروح)) تخلص غوره کړ. په علمي او ادبي ډګر کې یې لوړ نوم او شهرت په برخه شو.

د سید شمس الدین مجروح د رسمي او دولتي ماموریت پیلامه په ۱۳۱۳ لمریز کال د هېواد په پلازمېنه (کابل) کې د اعیانو د عالي مجلس په غړیتوب سره وشوه. په ۱۳۱۷ لمریز کال د افغان ملي بانک د تفتیش عمومي رییس شو. د همدغه کال په پای کې دقند جوړولو د فابریکې او د پټرولو د شرکت رییس شو. په ۱۳۴۲ لمریز کال د دولت په کابینه کې د عدلې چارو وزیر شو او په ۱۳۴۳ لمریز کال د هېواد اساسي قانون د تدوین د کمېټې مشر وټاکل شو. په ۱۳۴۴ لمریز کال د صدارت مرستیال او بیا په متحد عربي جمهوریت کې د افغانستان لوی سفیر شو.

دا د هغه وروستنی رسمي دنده وه، بیا یې تقاعد وکړ. پر ۱۳۵۷ لمریز کال په هېواد کې د ثور له پېښو وروسته لومړی له خپلې کورنۍ سره پېښور ته کډوال شو. څو کاله یې هلته د مهاجرت او جلا وطنۍ ستونزې او کړاوونه وزغمل او بیا له هغه ځایه د



امریکا متحده ایالتونو ته لاړ. هلته د ۱۳۸۱ لمریز کال د غبرگولي د میاشتې په وروستۍ
اوونۍ که دشاوخوا سلو کلونو په عمر په جلا وطنۍ کې له ژونده سترگې پټې کړې.
جنازه یې هېواد ته رواړل شوه او دکونړ ولایت په شینکوړک کې پخپله پلرنۍ هدیره کې
خاورو ته وسپارل شوه.

استاد مجروح د لوړ شاعرانه ذوق او فطري ادبي استعداد څښتن و، نو ځکه یې
شاعري هم له ځانگړي سوز او ساز نه ډکه وه. د هېواد مینې، ټولنیزو او ملي دردونو
یې شعر او ادب ته په زړه پورې رنگ او آهنگ وربخښلی او پخپل وخت کې یې د یو
وتلي او منلي شاعر او لیکوال په توگه له لوړ او ادبي مقام نه برخمن کړېدی. همدا لامل
دی چې استاد گل پاچا الفت په څېر خوږ ژبی او پیاوړي شاعر هم دې ته اړ وځي چې دده
ادبي عظمت وستایي او د شاعرۍ په ارزښت موندنه کې یې ولیکي:

((د ښاغلي شمس الدین مجروح له لوړې قریحې او شعر روزونکي استعداد څخه
ځیني داسې اشعار پیدا شوي دي چې که د اشعارو پېرل او پلورل رواج وای او د شعر
په ورکړه او راکړه د یو شعر د بل کېدلی، ما به خپل څو شعرونه د ده په یو شعر ورکړي
وو)) (منتخب شعرونه ـ سریزه)

استاد بېنوا په اوسني لیکوال دویم ټوک کې د مجروح علمي، ادبي او ټولنیز شخصیت
داسې راپېژني:

((ښاغلی مجروح د مطالعې ډېر شوق لري او د همدغه شوق اثر دی چې په اکثرو
ادبي، اجتماعي، فلسفي او مذهبي سختو مسایلو کې د ښه تحقیق خاوند دی، په تېره بیا
له روحیاتو او فلسفې سره زیاته دلچسپي لري. د ده مطالعه په دري، عربي او انگلیسي
کې ډېره ده، له اردو څخه هم استفاده کولی شي. دا ښاغلی خنده رویه با وقاره سړی دی،
آزاد طبیعت لري او په اشعارو کې یې د زاړه ادب د نازکخیالو نزاکتونه شته او هم د
اوسني عصر اجتماعي او تنقیدي رنگ لري.))

شمس الدین مجروح د پښتو د معاصر ادبي غورځنگ یو غښتلي او پیاوړی ادیب و.

د پښتو شاعرۍ او ليکوالۍ تر څنګ يې په دري ژبه خوږه شاعري او پخه ليکوالي هم کوله. نوموړی پر ادبي موضوعاتو سربېره سياسي او ټولنيز موضوعات په پاخه منطق او قوي استدلال څېړلي او ليکلي شول او لږو ډېر او وه لسيزې يې د هېواد په سياسي او فرهنګي ډګر کې غوره خدمتونه کړيدي. په هېواد کې د ثور له پېښو را وروسته کړکيچنو حالتونو کې له زړبوډۍ سره سره غلی پاتې نشو او د ژوند تر وروستۍ سلګۍ پورې يې د ناوړه حالاتو د تيارو په زړه کې د فکر ډيوې بلې کړې او زموږ اوسني نسل ته يې د ژغورنې پر لور لارښوونه کوله.

د اروابښاد مجروح ژوند پېښو ته په کتنې سره څرګندېږي چې نوموړي دخپل ژوند په بهير کې ډېر وخت د لوړو دولتي، رسمي سياسي چارو په سرته رسولو تېر کړېدی، د علمي، فرهنګي او مطبوعاتي خدمت لپاره ډېره موقع په لاس نه ده ورغلې، علمي او څېړنيز آثار يې ډېر نه دي ليکلي، خو بيا هم يې ځانګړي او د هېواد په مطبوعاتو کې د نظم او نثر ځينې خپاره شوي آثار (مقالې او شعرونه) موږ ته د دې څرګندويي کوي چې له ادب او فرهنګ سره مينه يې په ډېر ذوق او د زړه وينه پاللـه. تر اوسه يې د شعرونو دوه ټولګې: يوه د ((منتخب شعرونه)) په نوم پر ۱۳۳۷ لمريز کال په کابل کې د پښتو ټولنې له خوا او بله يې د پښتو او دري شعرونو غورچاڼ د ((ياد فرياد)) په نوم په ۱۳۶۳ لمريز کال په پېښور کې چاپ شوې ده.

د اوسني ليکوال مؤلف يې د دوو ناچاپو آثارو يادونه کوي، چې يو يې د عمر خيام د رباعياتو پښتو ژباړه او بل ((پريشانه خوب)) نومېږي.

برسېره پردې يې علمي، څېړنيزې ادبي، سياسي او ټولنيزې ليکنې او مرکې د هېواد دننه او بهر په مطبوعاتو او رسنيو کې خپرې شويدي.





دلته يې د شعر يو بېلګه لولو:

پــه مذهــب نــه د بلبــل نــه د پتنــګ يم
نــه غوټۍ غوندې د زړه پــه وينو رنګ يم

نــه اغـزی يـم چـې انګـر شـمه دګلـو
نــه د چـا د ډېې لاندې پوسـت پالنګ يم

غوټـۍ نه يم چـې مې جونې سـرکې کېږدي
چــې په غاړه مــې خوبان کا نــه لونګ يم

نــه ژړا يــم، نــه خنــدا نــه زير و بــم يم
نــه پوهېږم چــې زه څه او څــه آهنګ يم

نه وزګار يم، نه مې کار لکه ماشــوم شــته
يو ساعت خپه خوشـــحاله په بل درنګ يم

د دا هســـې بــې معنـا ژونـدون لپـاره
لــه اضدادو ســره تــل ولې پــه جنګ يم

چــې نــه درد يــم او نــه درد لــره دوا يم
زه له دې بې ســوز و سازه ژونده تنګ يم

خدايږو دې ژوندون نورستړی کړم ستومانه
د ژونــدون او د ژونــدو لپـاره ننګ يم

خــاوري يمــه خو لــه باده ســره مـل يم
د هرکــس او د ناکس له پښــو نه څنګ يم

تيښ مې مه بوله غورځنګ را باندې مه کړه
زه پــه دې آفتــاده ګۍ کې لــوی ګړنګ يم

نــه آيينــه يم چــې طرف شــمه د ښــکلو
چې مې کېــږدي په منګولو نــه اترنګ يم

نه مې روح د شرقيت دومره ژوندی دی
نــه خبــر لــه مــاديــت لــکـه فــرنــګ يم

((منتخب شعرونه))

دمتن لنډيز:

شمس الدين مجروح د پښتو ژبې د معاصرو نوميالیو ليکوالو او شاعرانو په ډله کې يوه وتلې او منلې څېره ده، د کونړ په ولايت کې يې سترګې نړۍ ته غړولې دي، د دولت په ځينو ادارو کې يې د وزارت او سفارت تر پوړه لوړې دولتي دندې تر سره کړي. د هېواد په مطبوعاتو کې په زيات شمېر مقالو او شعرونو سربېره يې د ((منتخب شعرونه)) او ((باد فرباد)) په نوم د شعرونو ټولګې چاپ شوي، په ۱۳۸۱ لمريز کال په امريکا کې د جلاوطنۍ په حال کې ومړ، جنازه يې هېواد ته راوړل شوه او پخپله پلرنۍ هديره (کونړ ــ شينکوړک) کې خاورو ته وسپارل شوه.



## فعالیتونه

۱ـ ځو زده کوونکي دې په خپله خوښه دمتن یو یو پارګراف په وار سره ولولي.

۲ـ ځو زده کوونکي دې د ټولګي په وړاندې دمتن مفهوم په لنډیز سره ووایې.

۳ـ ځو زده کوونکي دې متن په غور سره ولولي او په هغه کې دې فعلونه په نښه او لست کړي او د ټولګي په وړاندې دې ولولي.

**فعل**: فعل هغې کلمې ته وایې چې په یوه زمانه یا ټاکلي وخت کې د یو کار یا یوې پېښې په کېدو او یا د یو حالت په را ښرګندېدو دلالت کوي.

۴ـ زده کوونکي دې د تختې پر مخ یو یو فعل په جمله کې وکاروي.

۵ـ ښوونکی دې په لاندې پوښتنو پر لوست د پوهېدنې ارزونه وکړي:

- سید شمس الدین مجروح د چا زوی او چېرته زېږېدلی و ؟
- د مجروح چاپ شویو شعري ټولګو نومونه ووایاست؟
- سید شمس الدین مجروح کومې کومې دولتي دندې تر سره کړې وې؟
- مجروح چېرې مړ او چېرې خاورو ته وسپارل شو ؟
- د مجروح د فرهنګي او ادبي شخصیت په اړه خپل نظر ووایاست؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د کورنۍ دندې په توګه د مجروح د شعر مفهوم په لنډیز سره پخپلو کتابچو کې ولیکي او په راتلونکي پښتو لوست ساعت کې دې هغه د ټولګي په وړاندې ولولي.



# د پوهنتون د کانکور ازموينې لپاره نوم ليکنه

## (خبرې اترې)

_ تاسو پوهېږئ چې کانکور څه ته وايي؟

_ د کانکور د آزموينې لپاره څه کول په کار دي؟

کله چې په ثانوي او مســلکي ښوونځيو کې تر دولسم ټولګي پورې زده کړې تر ســره شي بيا هغه زده کوونکي چې غواړي لوړې زده کړې وکړي، هغوی لومړی بايد پوهنتون ته د شاملېدلو په موخه د کانکور آزموينه په برياليۍ توګه تېره کړي، د لوړو زده کړو د وزارت له خوا کومې ټاکل شوې نومرې، چې هر پوهنځي لپاره په پام کې دي، بايد تر لاســه يې کړي، نو په دې توګه په کانکور کې بريالی ګڼل کېږي او د خپلې خوښــې پوهنځي ته شــاملېږي، خو هغه زده کوونکي چې د کانکور ټاکلې نومرې تر لاســه نه کړی هغه بريالي نه ګڼل کېږي، خــو که هغوی چېرته بيا د کانکور د آزموينې لپاره چمتووالی ونيســي، بل کال بيا هم کولای شــي چې د کانکور د آزموينې لپاره نوم ليکنه وکړي او آزموينه ورکړي.

نواب: غمیه چېرته روان یې؟

غمی: ښوونځي ته ځم د کانکور لپاره نوم لیکنه کوم.

نواب: نوم لیکنه خو په وزارت کي کېږي، ته ښوونځي ته ولي ځې؟

غمی: نوابه زه سږکال له دولسم ټولګي نه فارغ شوم.

نواب: خو سمه ده فارغ شوی دې یې کنه.

غمـــی: نوابه! هغه زده کوونکي چـــې په کوم کال له کوم ښـــوونځي نه فارغېږی، نو له فراغت ســـره سم د ښـــوونځي مدیر د هماغو کسانو عکســـونه او د تذکرې فوټوکاپې ټولوي.

نواب: ښه نو بیا پرې څه کوي؟

غمی: بیا نو هغه عکسونه او د تذکرې فوتو کاپي وړي د لوړو زده کړو وزارت ته.

نواب: ښه، ښه د ښوونځیو مدیران یې وزارت ته وړي هه.

غمـــی: هـــو! بیا نو هلتـــه وزارت کې ورته ثبت نـــام کوي، دکانکـــور کارتونه ور نه جوړوي، بیا یې بېرته ښوونځي ته ورته راوړي.

نواب: ښه نو چې موږ فارغ شو موږ ته به یې هم جوړوي کنه.

غمی: بالکل تاسې ته به هم مکتب ته کارتونه راوړي.

نواب: ښه نو نن تاسې ته د کانکور کارتونه درکوي؟

غمی: هو موږ خپل عکســـونه او د تذکرې فوتوکاپي ورکړي دي، اوس مدیر صاحب غوښتي یو کارتونه یې راوړي دي.

نواب: ته ګوره غمیه! د کانکور امتحان هم درنه همدلته په لېسه کې اخلي؟

غمی: نه، نه ساده ګله، امتحان به را نه څنګه به لېسه کې اخلي.

نواب: نو چېرته یې درنه اخلي.

غمی: د کابل په ښار په یو پوهنتونو کې به یې را نه اخلي.

نواب: نو تاسې به څنګه پوهېږئ چې امتحان به درنه په کوم پوهنتون کې اخلي؟

غمـــی: دا خو را ته مدیر صاحب ویلي وو او ما پخپله تېر کال زما د ورور د کانکور



آزمويني كارت ليدلى و.

نواب: ښه نو هغه ته يې په كارت كې څه ليكلي وو ؟

غمـــي: په كارت كې ورته د امتحان اخيســـتلو تاريخ ليكلى و، چې په پلانكې ورځ د سهار په اته بجو به ورځي.

نواب: ښه نور ؟

غمـــي: نور يې ورته د امتحان اخيســـتلو ځاى ټاكلى و او ورتـــه يې ليكلي وو كابل پوهنتون، ادبياتو پوهنځى، ۱۲ نمره خونه كې به ترې امتحان اخيستل كېږي.

نواب: بېشـــكه ولا دا خو نو ســـړى نه غلطېږي او راســـاً به هماغه ځاى ته ورځي او امتحان به وركوي.

غمي: هو زما ورور له امتحان نه څو ورځې مخكې پوهنتون ته ورغى، هماغه ۱۲ نومره كوټه يې وليده، د امتحان په ورځ سيده هماغه ځاى ته ورغى.

نواب: غميه يوه بله پوښـــتنه، دا خو دلته په كابل ښـــار كې خلـــک د كانكور آزموينه دغسې وركوي په اطرافو كې يې خلک څه ډول وركوي ؟

غمي: په دې خبره خو زه دومره نه پوهېږم، درځه چې د اجمل خواته ورشـــو، هغه له اطراف نه دو ځله امتحان وركړى دى.

نواب: سمه ده درځه چې ورشو.

نواب: السلام عليكم اجمل جانه!

اجمل: وعليكم السلام په خير راغلئ، خيرت خو به و څنگه را پېښ شوئ ؟

غمي: دغه نواب را نه يوه پوښتنه وكړه، زه يې په ځواب و نه پوهېدم، تا ته راغلو.

اجمل: وايه وايه څه پوښتنه ده ؟

نواب: اجمل جانه غمي راته د كانكور په آزموينه كې د گډون هغه پروسه، چې په مركز كې دولسم ټولگيو فارغانو يې تر سره كوي، ټوله تشريح كړه.

غمـــي: دى وايي هغه خلک چې په اطراف كـــې د كانكور آزموينه وركوي هغوى څه ډول ثبت نام كوي ؟



اجمل: ښــه، ښه په اطراف کې خو داسې وي چې د څو ولايتونو دکانکور ازموينه په يوه مرکزي ولايت کې اخيستل کېږي.

نواب: لکه څنګه؟

اجمل: لکه د افغانســتان د شرقي ســيمو د ولايتونو د آزموينه، چې ننګرهار، لغمان، کونړ او نورســتان ولايتونه دي، د دوی آزموينه د ننګرهار په جلال آباد ښار کې اخيستل کېږي.

غمی: ددغو ولايتونو فارغ شوي شاګردان جلال آباد ته د امتحان لپاره ورځي؟

اجمل: هو.

نواب: نو کانکور لپاره نوم ليکنه څه ډول کوي.

اجمل: نوم ليکنه داسې وي چې ددغو ولايتونو د هماغه کال د دولسم ټولګيو فارغانو، ثبت نام په خپل ښــوونځي کې کېږي، عکســونه، نومونه او تذکره ترې په ښوونځي کې اخيستل کېږي.

غمی: بيا به نو کارتونه ورته په وزارت کې جوړېږي او بېرته ښــوونځيو ته به ورل کېږي کنه؟

اجمل : نه، نه کارتونه يې په وزارت کې نه جوړېږي، کارتونه يې د ننګرهار په پوهنتون کي جوړېږي، د امتحان ورځ، ځای ورته ټاکل کېږي او شاګردانو ته ورکول کېږي.

نواب: ښه، ښه نو داسې ده هه.

اجمل: هو، خو يو ډول بل ثبت نام هم شته دی.

نواب: هغه کوم ثبت نام دی؟

اجمل: دا خو هغه ثبت نام و چې په اطرافو او مرکز کې څوک په کوم کال له دوولسم ټولګي نه فارغېږي امتحان ورکوي.

نواب: هو بالکل.

اجمل: بل ثبت نام هغه دی، چې که يو څوک سږکال امتحان ورکړي او په امتحان کې دخپلې خوښــې پوهنځي ته بريالی نه شي يا بالکل ناکام شي او بيا و غواړي چې بل کال



ته بیا امتحان ورکړي.

غمی: هو په خدای ډېر شـاګردان همدغسـې کېږي کنه، ښه نو دغه خلک په څه ډول ثبت نام کوي؟

اجمل: اول خبره خو دا ده چې دغه ډول زده کوونکي به د هر کال له نو و فارغ شـو و دو ولسم پاسانو نه جدا امتحان ورکوي. دغې آزموینې ته متفرقه آزموینه وايي.

نواب: یعنې چې امتحان یې د مکتبونو له فارغینو نه جدا وي.

اجمل: هو بالکل او ثبت نام یې هم سره توپیر لري.

غمی: ښه دوی څه ډول ثبت نام کوي؟

اجمـل: دا خلک که په کابل ښـار کې متفرقـه امتحان ورکوي، نو کلـه چې امتحان اخیستل کېږي ځي د لوړو زده کړو وزارت ته هلته ورته یوه فورمه ورکول کېږي.

نواب: ښه فورمه کې به یې څه لیکي؟

اجمل: په فورمه کې به خپل نوم، د پلار نوم، د لېسې نه چې فارغ شوی د هغې لیسې نوم، تېر کال یې چې دکانکور امتحان ورکړېدی د هغه په اړه معلومات لیکي.

غمی: د تېر کال دکانکور په اړه به څه معلومات لیکي؟

اجمل: یعنې که کوم پوهنځي ته کامیاب شـوی او هغه یې نه دی لوسـتی، بیرته یې له هغـه نه ځـان منفک کړیدی او کنه، که یې ځان نه وي منفـک کړی اول باید ځان منفک کړي بیا به امتحان ورکړي.

نواب: ښه، ښه دا خو ولا چې ډېرې خبرې لري.

اجمل: بیا له هغې نه وروسـته به هغه فورمه خپلې لېسـې ته، چې ترې فارغ شـوی، راوړي هلته به یې تصدیق کوي.

غمی: ښه، نور به یې کوم کوم ځای ته وړي؟

اجمل: بیا به یې دکابل ښـار د پوهنې ریاسـت تـه ور وړي، هغوی به یې تصدیقوي، له هغه وروسـته به یـې د پوهنې وزارت د ثانوي زده کړو ریاسـت ته وروړي، هلته به یې د فارغانو شـعبه امضاء کوي او له هغې وروسـته به یې د لوړو زده کړو د وزارت د امتحاناتو څانګې ته تسلیموي.



نواب: دا خو یې ډیرو ځایونو ته ورورې.

اجمل: هو، بیا نو تر هغې وروسته به د امتحان اخیستلو تر نېټې انتظار باسي، کله چې اعلان و شو هغو کسانو چې ثبت نام کړی، ورځي به خپل کارت به اخلي.

غمې: دکارت لپاره به خپل عکسونه او د تذکرې فوتوکاپي هم ورورې کنه؟

اجمل: هو بالکل له عکسونو او تذکرې پرته خو بالکل ثبت نام نه کېږي.

نواب: چې کارت ورته ورکړي، بیا به یې په کې تاریخ، د امتحان اخیستلو ځای او ټول شیان ورته لیکلي وي کنه؟

اجمــل: هو بالکل، دا هر څه ورته لیکي، خو که څوک په اطراف کې دغســې امتحان ورکوي، نو هغوی هم باید د هماغې حوزې د امتحان اخیستلو ځای ته ور شي.

غمی: هلته هم باید اول ریاست ته عریضه وکړي.

اجمل: عریضه کوي، فورمه ورکول کېږي، ټول معلومات به په فورمه کې لیکي.

نواب: که منفک شوی نه وي منفکي هم باید ولیکي.

اجمل: خو ما درته و ویل ټول معلومات، بیا به دا فورمه وړي هغه ښــوونځي ته چې دی ترې فارغ شــوی، ښــوونځی به یې تاییدوي، بېرته به یې د هماغه ولایت د پوهنې په ریاست کې هم تصدیقوي له هغه وروسته دې د حوزې د کانکور آزموینې اخېستلو مرکز ته ورورې.

غمې: هغه مرکز به ورته وايي چې انتظار وباسه چې کله امتحان اخیستل کېږي.

اجمل: هو، کله چې د امتحان اعلان وکي، بیا به هماغه مرکز ته ورځي او خپل کارت به اخلي.

نواب: او بیا به نو امتحان ورکوي.

غمــې: اجمل جانه کور دې ودان، پوره معلومات دې راکړل، نور نو موږ هم درنه ځو د خدای په امان.

اجمل: په مخه مو ښه.



د متن لنډيز:

هر ځوان هيله لري چې ښې زده کړې وکړي او هم لوړې زده کړې سرته ورسوي.
زموږ په هېوادکې ځوانان د لسانس او آن د ماسترۍ په کچه زده کړې سر ته رسولای شي، خو هغه کسان کولای شي لوړې زده کړې وکړي چې په کانکور کې بریالي شوي وي. د کانکور آزموینه د دوولسم ټولګي د فارغانو د زده کړې د ارزونې لپاره ډېره ښه وسیله ده . هغوی چې په دولس کلنه ښوونیزه او روزنیزه دوره کې زیار ایستلی، لوستونه یې ښه زده کړي وي، هرومرو د پوهنتون د کانکور په آزموینه کې بریالی کېږي او د خپلې خوښې ور پوهنځي ته ورځي، دکانکور د آزموینې ټول پړاوونه د پوهنې وزارت او د لوړو زده کړو د وزارت په مرسته سمبالېږي.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په چوپتیا سره ولولي، ستونزمنې کلمې دې په پنسل په نښه کړي، بیا دې زده کوونکي نوموړي لغتونه پر تخته ولیکي او ښوونکی دې معنا کړي، نور زده کوونکي دې یې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

۲ـ یو زده کوونکی دې د خبرو اترو څو جملې ووایي او له بلې ډلې څخه دې یو زده کوونکی ددې په هکله خبرې وکړي.

ښوونکی دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي:

۱ـ څوک د کانکور آزموینه ورکولای شي؟

۲ـ دکانکور آزموینه چېرې او د چا له خوا اخیستل کېږي؟

۳ـ آیا د هېواد په مهمو ولایتونو کې دکانکور آزموینه اخیستل کېږي او که نه؟

۴ـ څو تنه زده کوونکي دې د خپلې خوښې پوهنځي په اړه خپلو ټولګیوالو ته خبرې وکړي او هغوی ته دې څرګنده کړي چې ولې یې هماغه پوهنځی غوره کړی دی؟

۵_ ښوونکی دې زده کوونکي پر دوو ډلو وویشي: یوه ډله دې په متن کی له راغلو څو فعلونو څخه جملې جوړې کړي او بله ډله دې په متن کې د خاص نومونو په اړه څو جملې جوړې کړي او بیا دې هره ډله خپلې جوړې کړې جملې د ټولګیوالو په مخ کې ولولي.

۶_ که چیرته له تاسو څخه دکانکور د آزموینې په اړه څوک پوښتنه وکړي، کولای شئ دغه ښه هغو ته تشریح کړئ، لنډ مفهوم یې د خپلو ټولګیوالو په وړاندې هم وواياست.

۷_ هغه توکي چې د کانکور د آزموینې لپاره پکارېږي، په تفصیل سره یې نومونه واخلئ.

۸_ څو زده کوونکي دې د خبرو اترو د اصلي مفهوم په هکله و غږېږي.

۹_ څو زده کوونکي دې ددې لوست په زده کړې سره په راتلونکي وخت کې د خپل تصمیم په باره کې خبرې وکړي.




زده کوونکي دې دکانکور د آزموینې د ښه په هکله څو کرښې مطلب ولیکي او په راتلونکي درسي ساعت کې دې یې خپلو ټولګیوالو ته خپله ولولي.

# د پښتو ادبي مکتبونه





ـ تاسې د مخه د ادبي مکتب نوم اورېدلی؟

ـ پوهېږئ چې ادبي مکتب څه ته وايي؟

د ادبي مکتب اصطلاح په ادبياتو کې هغه پراخ ادبي بهير (جريان) يا د نظم او نثر د وينا او ليکنې لارې (طريقې) ته کارول کېږي، چې په يوې فرهنگي او جغرافيايي حوزه کې د گڼ شمېر شاعرانو او ليکوالو د ځانگړو شعري يا نثري سبکونو له گډون څخه را منځته کېږي. د يوې ډلې شاعرانو يا ليکوالو په آثارو کې دغه گډې ځانگړنې د هم مهالو شاعرانو او ليکوالو له تخليقي آثارو څخه د بېلتون سبب گرځي.

د پښتو ادبي تاريخ په کلاسيکه يا منځنۍ دوره کې څلور داسې پراخه ادبي جريانونه شته، چې ادبپوهانو په خپلو ادبي څېړنو کې هغو ته د ادبي مکتبونو نوم ورکړی، په دې لوست کې دغه ادبي مکتبونه در پېژنو.

په عام ډول د مکتب لغوي معنا د لیک، زده کړې او د ښوونې روزنې ځای دی، خو د ادبي مکتب اصطلاح د هغه پراخ ادبي جریان او لارې لپاره کارول کېږي، چې د زیات شمیر ادیبانو (لیکوالو او شاعرانو) د لیکنې یا وینا د سبکونو له ګډون څخه منځته راغلې وي. په یوه بله پېژندنه کې یې لولو چې: ادبي مکتب د هغو نظریو، ادبي او فرهنګي ځانګړنو مجموعه ده چې د یو یا څو هېوادونو د فرهنګي ټولنیزې او سیاسي اوضاع په بهیر کې را منځته شوې وي.

دغه ځانګړنې معمولاً د لیکوالو او شاعرانو د یوې ډلې په آثارو کې سره ګډې او مشترکې وي او د نورو شاعرانو او لیکوالو له تخلیقي آثارو څخه د توپیر او بېلتون سبب ګرځي.

کله چې موږ د پښتو د ادبي تاریخ د کلاسیکې یا منځنۍ دورې پاڼې را اړوو په بېلابېلو پړاوونو کې د ځینو داسې سترو ادبي جریانونو بېلګې مخې ته راځي چې د ادبي مکتب بنسټیزې ځانګړنې پکې څرګندې دي، زموږ ادبي څېړونکو او ادب پوهانو پخپلو لیکنو کې دغه ادبي جریانونه د پښتو ادبي مکتبونه بللي او نومولي دي، چې دلته یې په لنډه توګه له خپلو ځانګړنو سره درپېژنو:

## ۱ـ روښاني ادبي مکتب:

دغه ادبي مکتب د لسمې هجري پېړۍ په دویمه نیمايي کې رامنځته شوی دی. د دې ادبي مکتب بنسټ ایښودونکی پیاوړی علمي، ادبي او فرهنګي شخصیت او ملي مبارز بایزید انصاري (۹۲۵ـ ۹۸۵ هـ.ق.) دی، چې په پیر روښان شهرت لري. نوموړي د خپلې تصوفي او عرفاني لارې د تبلیغ او خپراوي لپاره ادبي او فرهنګي هلې ځلې پیل کړې. په خپلو منثورو او منظومو لیکنو کې یې ځانګړې ادبي لاره او سبک را منځته کړ، ډېر پلویان یې و موندل، هغوی دده لاره تعقیب کړه او دغسې زموږ په ادبي تاریخ کې روښاني ادبي تصوفي عرفاني مکتب را منځته شو. ددې مکتب د پیاوړو لیکوالو او شاعرانو په ډله کې دا لاندې نومونه د بېلګې په توګه یادوو:



ارزاني خويشکی، علي محمد مخلص، دولت لوانی، ابابکر کندهاری، واصل روښاني، ميرزاخان انصاري، ورکزی، قادرداد او نور.

ددې ادبي مکتب له ډېرو سترو ځانګړتياو و څخه دادي:

(۱) تصوف او عرفان پېچلو مسايلو او اصطلاحاتو په پراخه پيمانه پښتو ادب ته لاره کړې.

(۲) د عربي او فارسي شاعرۍ زياتره شکلي فورمونه، لکه قطعه، رباعي، قصيده، او نور پښتو ادب ته راغلي او شاعرانو د عربي او فارسي ژبو د شاعرانو په څير مردف ديوانو نه جوړ کړي دي.

(۳) په نثري ليکنو کې مسجع نثر رواج شوی.

(۴) اخلاقي او ديني مسايل په پښتو شعر او ادب کې زيات شوي او د عربي او فارسي ادب اغېز پر پښتو ادب زيات شوی دی.

## ۲_ خوشحال ادبي مکتب:

دغه ادبي مکتب کله کله په ادبي څېړنو کې د ((ختکو ادبي مکتب)) په نوم هم ياد شوی دی.

په يو ولسمه هجري قمري پېړۍ کې منځته راغلی، بنسټ ايښودونکی يې د پښتو ژبې پياوړی ليکوال، شاعر، دتورې او قلم خاوند خوشحال خان خټک (۱۰۲۲_۱۱۰۰هـ.ق.) دی.

د خوشحال خټک ادبي لاره د ده زامنو، لمسيانو او نورو پلويانو پاللې او تعقيب کړې او د خوشحال ادبي مکتب يې جوړ کړی دی. د دې مکتب نوميالي استازي: اشرف خان هجري، عبدالقادر خان خټک، سکندرخان خټک، صدرخان خټک او نور دي.

ددې مکتب سترې ځانګړتياوې دادي، چې پښتو شعر او ادب يو نوي پرمختيا يې پړاو ته داخل او د ودې او پرمختيا لپاره يې په شعوري توګه هلې ځلې پيل شوي دي. د مسجع او متکلف نثر پر ځای ساده، روان او د خلکو محاورې ته نږدې نثر ليکنه پيل شوې او

د ختيځو ځانګړی ليکدود (رسم الخط) را منځته شوی دی. په شعر او ادب کې حماسي، رزمي او ملي روحيه پياوړې شوې. شعر او ادب د مضمون له پلوه ډېر بډای شوی او په پخوانيو عشقي، عرفاني، پند او نصيحت او اخلاقي مسايلو سربېره بېلابېل موضوعات تاريخي پېښې، پر ټولنه او حاکمه طبقه انتقادونه، له قوم او وطن سره د مينې احساسات په پراخه پيمانه په ادب کې انعکاس مومي، د پښتو ملی کيسې (لکه آدم خان درخانی، دلی شهی) ليکل شوې او له نورو ژبو څخه هم په پراخه پيمانه کيسې او نور علمي، ديني او ادبي آثار وژباړل شول.

### ۳_ درحمان بابا تصوفي – عرفاني ادبي مکتب:

د پښتو پياوړی شاعر رحمان بابا ( ۱۱۲۸-۱۱۴۲ هـ ق) د يو ستر ځانګړي تصوفي – عرفاني ادبي سبک خاوند و، چې هغه پخپل وخت کې له زيات ټولنيز مقبوليت نه برخمن شو. په هماغه مهال او را وروسته زمانو کې يې ډېر پلويان او لارويان وموندل، چي دده ادبي لاره يې تعقيب او دوخت په تيربدو يې د يو ادبي مکتب بڼه غوره کړه او زموږ په ادبي څېړنو کې د رحمان بابا تصوفي _ عرفاني ادبي مکتب نوم ورکړل شوی دی.

ددې ادبي مکتب نوميالي استازي او پلويان: يونس خېبري، معزالله مومند، اخون ګدا، حافظ الپوری، ميا نعيم متي زی، عبدالعظيم رانيزی، عبدالرحيم هوتک، مطيع الله پيرخېل او نور دي.

ددې ادبي مکتب سترې ځانګړنې دادي، چې ويناوال د اخلاقو پند او نصيحت خواته ډېره پاملرنه کوي. د عربي او فارسي ژبو ډېرې کلمی اصطلاحات، تشبيهات او استعارې په پراخه پېمانه پښتو شعر او ادب ته را ننوتي دي. په دې ادبي مکتب کې ويناوال واقعيت او حقيقت ته ډېره پاملرنه کوي. د خيال او مبالغې پلويتوب پکې ډېر کم دی. د پښتني چاپېريال خپل رنګونه پکې په ځليدو او د هندي سبک اغېزې پکې ډېرې نه ليدل کېږي.



## ۴_ د نازکخیالۍ ادبي مکتب:

د پښتو نازکخیالۍ ادبي مکتب د دوولسمي هجري پیړۍ په اوږدو کې د فارسي د هندي ادبي مکتب تر اغېزو لاندې را مینځته شوی دی. بنسټ ایښودونکی یې د پښتو نازکخیاله شاعر عبدالحمید مومند (تر ۱۱۴۸ هـ.ق. پورې ژوندی) او بشپړونکی یې کاظم خان شیدا (۱۱۳۵_۱۱۹۵ هـ.ق.) علي خان اونور ګڼل شوي دي.

سره له دې چې د دغو پیاوړو شاعرانو ادبي سبکو نه یو له بله لږو ډېر توپیر او خپلې خپلې ځانګړنې هم لرې او په زماني لحاظ هم یوه له بله څو لسیزې وړاندې وروسته دي، خو دا چې دغه شاعران د هندي سبک د لږو یا ډېرو اغېزو په منلو سره په پښتو شعر کې د نازکخیالۍ لاره تعقیبوي او د پیاوړو ادبي سبکونو خاوندان کېږي. د خپل وخت او یا وروسته زمانې ډېر شاعران د دوی د ادبي لارې پلویتوب کوي، ددغو بیلابیلو ادبي سبکونو له ګډون څخه یو ځانګړی ادبي مکتب منځته راځي، چې په ادبي څېړنو کې د نازکخیالۍ ادبي مکتب او کله کله ((د حمید او شیدا د نازکخیالۍ ادبي مکتب)) نوم ورکړل شوی دی.

ددې ادبي مکتب پیاوړي استازي او پلویان له حمید او شیدا سر بېره، چې ددې مکتب بنسټګر بلل شوي دي، قلندر اپریدی، محمدي صاحبزاده، علي خان، کامګار خټک، بیدل هشنغری، حنان بارکزی او نور دي.

د نازکخیالۍ ادبي مکتب سترې ځانګړنې: لوړ تخیل، نازکخیالي، نوښت، نادرې استعارې او تشبیه ګانې، د غزل فورم پکې د کمال پوړ ته رسیدلی، د اشعارو موضوع زیاتره د مینې او محبت مسایلو ته وقف شوې، په شعرونو کې متلونه، اصطلاحات او محاورې ډېرې کارول شوي او ویناوالو د فارسي ادب اغېز په پراخه پیمانه منلی دی.

د متن لنډيز:

ادبي مکتب هغه پراخه ادبي لاره ده چې د ګڼو شاعرانو يا ليکوالو د ځانګړو ادبي سبکونو له يو ځای کېدو څخه د يو ستر ادبي جريان په توګه را منځته شوې ده. موږ د پښتو ادبي تاريخ په منځنی يا کلاسيکه دوره څلور ادبي مکتبونه لرو، چې د دغې دورې په بېلابېلو پړاوونو کې را منځته شوي، وده او پرمختيا يې موندلې ده. په دغو ادبي مکتبونو کې لومړنې روښاني ادبي عرفاني مکتب دی، چې بنسټګر يې بايزيد روښان (۹۲۵_۹۸۵ هـ.ق.) دی او ډېرو شاعرانو او ليکوالانو يې پېروي کړې ده. دويم ادبي مکتب د خوشحال ادبي مکتب دی، چې بنسټګر يې خوشحال خټک (۱۰۲۲_۱۱۰۰هـ.ق.) دی. دريم ادبي مکتب د رحمان بابا ادبي عرفاني مکتب دی، چې بنسټ ايښودونکی يې رحمان بابا (۱۰۴۲ _ ۱۱۲۸ هـ.ق.) دی. څلورم ادبي مکتب د حميد د او شيدا د نازکخيالۍ ادبي مکتب دی، چې په پښتو کې د هندي ادبي مکتب په پيروۍ را منځته شوی، خو پښتنی رنګ او امتياز يې خوندي دی. دغه مکتبونو خپل لړو ډېر پيروان لري، چې دسبکونو ګډې ځانګړنې پکې جوتې دي.

فعاليتونه

۱_ زده کوونکي دې متن په چوپه خوله په غور او دقت مطالعه کړي او بيا دې په خپل وار سره يو يو پرګراف د ټولګي په وړاندې ولولي، ښوونکی دې له هغوی سره د اړتيا په مهال په متن لوستنه کې مرسته وکړي.

۲_ زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته را وبلل شي، چې په متن کې د پېژندل شوي يو ادبي مکتب په هکله خبرې وکړي.

۳_ ښوونکی دې د پښتو څلورو ادبي مکتبونو د نوميالیو استازو دا لاندې د شعر څو بيتونه زده کوونکو ته په لنډه توګه توضيح او تشريح کړي او د هر استازي شاعر په شعر کې دې د هغه د اړوند ادبي مکتب ځينې ځانګړنې وښيي:

(۱)

ای پــه ځــان لــه خپلــه ځــانــه بــې خبــره
تــه مـعـنـا لــه مـعـنـا وغــــواړه بـشــره
د ایـــمــان لـــه روښــنــايـــۍ خـبــره زده کــړه
دا د کـفــر تــيـــاره يـــوســـه تــر ســحــره

(میرزا خان انصاري ـ روښاني ادبي مکتب)

(۲)

مـــــردان هـغـــه دي چـــې هــمــتــنــاک دي
د نــنــگ پـــه کـــار کـــې چــســت و چـــالاک
کـــار چــې آغـــازکـــړي انــجـــام يـــې هـــم کـــړي
پـــه خـولـــه هـم پـــاک وي پـــه زړه هـم پـــاک وي

(خوشحال خان خټک ـ خوشحال ادبي مکتب)

(۳)

زه لـــه دې جـهــانــه تـلــونــی پـــه شــتـــاب يـم
لـکــه پــانــه د خـــزان پـبـنــه پـــه رکـــاب يــم
کـــه هـــزار آبـــادانـــي کـــړم پـــه جـــهـــان کـې
غـــرض دا چـــې نــهـايـت خـانــه خـــراب يــم

(عبدالرحمان بابا ـ د رحمان بابا تصوفي مکتب)

(۴)

مـعـلــومـېــږي ســتـــا د ســتــرگــو لـــه غـمـزو
چـــې يـــې مـــرگ د تـــېـره تـېـغ دی راپـيــرزو
ســتـــا د ســتــرگــو د بـــانـــو تــرمــنـځ حـيـــران يم
يـــو مـــې وژنـــې پـــه ســـره اور بــل پـــه نـيــزو

(حمید مومند ـ د نازکخیالی ادبي مکتب)

۴ـ زده کوونکي دې په دریو ډلو وېشل شي، متن دې په ډېر غور او دقت ولولي، یوه ډله دې په متن کې خاص نومونه، بله ډله دې صفتونه او دریمه ډله دې قیدونه په نښه او لست کړي. د هرې ډلې استازی دې هغه د ټولګي په وړاندې ولولي. ښوونکی دې د هرې برخې (خاص نومونو، صفتونو، قیدونو) بشپړ لست د تختې پر مخ ولیکي.

زده کوونکي دې د تختې پر مخ لیکلي لستونه په خپلو کتابچو کې ولیکي.

۵ـ په دې لاندې پوښتنو دې د لوست د زده کړې ارزونه وشي:

- ادبي مکتب څوک تعریفولی شي؟
- د پښتو ادبیاتو په کلاسیکه ادبي دوره کې څو ادبي مکتبونه پېژنئ، نومونه یې واخلئ.
- د روښاني ادبي مکتب بنسټ ایښودونکی څوک و، د څو ادبي لارویانو نومونه یې واخلئ.
- د خوشحال ادبي مکتب بنسټ ایښودنکی څوک و، د څو ادبي پیروانو نومونه یې واخلئ.
- د رحمان بابا د ادبي مکتب د څو مشهور و پېروانو نومونه واخلئ.
- د حمید او شیدا د نازکخیالۍ د ادبي مکتب ځانګړ تیاوې وواياست او د څو نامتو پیرانو نومونه یې واخلئ.




زده کوونکي دې پخپله خوښه له څلورو ادبي مکتبونو څخه د یوه ادبي مکتب د یو پیرو شاعر په هکله لنډ معلومات ولیکي او په راتلونکی پښتو درسي ساعت کې دې هغه د ټولګیوالو په وړاندې ولولي.



# د پښتو نثر ډولونه




ـ څوک نثر تعریفولی شي؟

ـ نثر له نظم يا شعر سره څه توپير لري؟

هغه وينا، چې ليکلې وي که ويلې، خو چې د وزن او قافيې له قيد څخه آزاده وي او موږ يې پخپل مينځ کې د پوهونې را پوهونې او مطالبو د افادې لپاره کاروو، نثر بلل کيږي. ليکليو نثرونو د خپل تاريخي پرمختيايي بهير په اوږدو کې بيلابيلې بڼې لرلي، او اوس هم په هره ژبه کې د معنا او منځپانګې (محتوا) او همدارنګه د بڼې او شکل له مخي بيلابيل ډولونه لري، موږ په دې لوست کی په پښتو ادب کې نثر د پخوانيو او اوسنيو دود ډولونو په هکله معلومات درکوو.

نثر په لغت کې شیندل، تیتول او پاشل دي او په اصطلاح کې هغه وینا یا لیکنه ده چې وزن او قافیې له قید او بند څخه آزاده وي.

د اوسنیو ادبپوهانو په نظر نثر یو ادبي ډول دی او څرنګه چې د وزن او قافیې له قید نه خلاص دی، نو د هر ډول افکارو د افادې او بشري پوهنې، دیني، فلسفي، ښوونیزو روزنیزو او ټولنیزو مسایلو د څرګندولو او بیانولو ډېره غوره او مناسبه وسیله ده.

نثر د لیکنې د طرز له مخې په دریو سترو ډولونو ویشل کېږي:

۱ـ ساده یا مرسل نثر: هغه نثر دی چې لفظي او معنوي صنایع پکې نه وي کارول شوي.

۲ـ فني نثر: چې لیکوال ورسره خپل احساسات او عواطف هم ملګري کوي. یا په بله وینا د مطالبو د افادې لپاره له تخیلي ځواک څخه هم کار اخلي.

۳ـ ساده ولسي نثر: چې کټ مټ د خلکو په ژبه، چې څنګه ویل کېږي، هغسې لیکل کېږي.

ادبپوهانو د پښتو پخواني نثرونه په درې ډولونو وېشلي دي:

## الف ـ متکلف نثرونه:

په پښتو ژبه کې دا ډول نثرونه د باسواده قشر (لیکوالو) له خوا د عربي او دري ژبو تر اغیز لاندې لیکل شوي دي. په پښتو ژبه کې ددې نثر ډېره غوره تر لاسه شوې بېلګه د سلیمان ماکو د تذکرة الاولیاء (۶۱۲ هـ.ق. شاوخوا) دکتاب نثر دی.

## ب ـ مسجع یا قافیه وال نثر:

په دې ډول نثرونو کې لیکوالو وزن لرونکې او مسجع کلمې د شعر دقافیو په څیر کارولې وي. په پښتو ادب کې ددې ډول نثر ډېرې ښې پخوانۍ نمونې په لسمه هجری پیړۍ کې لیکل شوي د بایزید روښان ((خیرالبیان)) او دا خوند درویزه ((مخزن الاسلام)) کتابونه دي.



### ج_ ساده او روان نثرونه:

په دې ډول نثر کې نه د مسجع نثر په څېر سجع او وزن لرونکې کلمې لیدل کیږي او نه پکې د متکلفو نثرونو په څېر لفظي کړکیچ او پیچلتیا ښکاري. بلکې لیکوالو یې کوښښ کړی چې د خلکو محاورې ته نږدې نثر ولیکي. د پښتو په لرغوني نثر کې یې ډېره ښه بیلګه د خوشحال خټک لیکلی اثر ((دستارنامه)) (۱۰۷۶ هـ. ق. تالیف) ده.

د معنا او محتوا له مخې د نثري آثارو ډولونه:

په پښتو ژبه کې د محتوا او موضوع له مخې نثري آثار په عامه توګه ډېر ډولونه لري. دلته یې څو مشهور ډولونه درپېژنو او د ځینو یوازې نومونه اخلو:

حماسي نثري آثار: چې پخواني، اوسني ملي حماسي مسایل، د اتلانو ویاړلې کارنامې پکې بیان یا څېړل کېږي.

غنایي نثري آثار: د مینې، محبت عاطفي او احساساتي مسایل پکې بیانېږي.

تاریخي نثري آثار: چې د ټولنې، قوم، ملت او خلکو سیاسي، ټولنیزې او علمي پیښې پکې بیانېږي. په پښتو کې یې مثالونه بېلابېل لیکلي تاریخونه، لکه د پوهاند حبیبي د افغانستان لنډ تاریخ، د حبیب الله تږی ((پښتانه)) او نور دي.

دیني نثري آثار: په دې ډول آثارو کې د دیني او مذهبي مسایلو په باب لیکنې شاملې دي. په پښتو کې یې بېلګې کابلی تفسیر، سیرت النبي، د استاد الفت اسلام او په ټولنه کې د هغه نقش او نور دي.

همدارنګه عرفاني نثري آثار، اخلاقي نثري آثار، علمي او فلسفي نثري آثار، انتقادي نثري آثار، د مشاهیرو احوال او تذکرې، په ژبې او ادبیاتو پورې مربوط نثري آثار، چې د بلاغت فنون، د عروضو او قافیې علم، د لغاتو او اصطلاحاتو پېژندنه، ګرامري آثار، د لیکوالۍ او څېړنې په اړه لیکلي نثري آثار او داسي نور دي، چې په پښتو کې د ټولو

ډیرې بیلګې شته دلته، د ټولو یادونه او په اړه یې څرګندونې د بحث لمنه غځوي، نو ځکه یوازې یې د نومونو په اخیستلو بسنه وشوه.

د بڼې او شکل له مخې د پښتو د اوسني نثر ډولونه:

د بڼې او فورم له مخې اوسني پښتو نثر په دوو سترو برخو بېلېږي:

ساده نثرونه، هنري او ادبي نثرونه .

په ساده نثرونو کې ټولې علمي، ادبي، سیاسي او ژورنالستیکې لیکنې او همدارنګه ځیړنیز تحلیلي او تشریحي لیکنې او آثار راځي. چې په ساده ژبه د فکر او نظر د څرګندولو او نورو ته د پوهې او معلوماتو د لېږدولو ډېره غوره او اغیزناکه لاره ده.

هنري او ادبي نثرونه بیا خپلې بیلې ځانګړنې لري چې د هغو له مخې یې له عادي او ساده نثر څخه توپیر کیږي. ډېره مهمه او اساسي ځانګړنه، چې ادبي نثر له ساده نثر څخه بیلوي، هغه ((هنري ارزښت)) یا ادبي او هنري ارزښت دی.

په هنري ـ ادبي نثر کې لیکوال د ښکلا ښېلو منظر کښنو، انساني خصوصیاتو، روحیاتو، عاداتو، حالاتو او داسې نورو مسایلو په الفاظو کې د انځورولو او نورو ته د وړاندې کولو لپاره له خپل تخیلي ځواک څخه کار اخلي. حالات، واقعیتونه یا پیښې په الفاظو کې داسې را نغاړي چې لوستونکی یا اورېدونکی فکر کوي چې هر څه په خپلو سترګوویني او ځان ورته په صحنه کې شامل ښکاري.

په پښتو کې د هنري او ادبي نثر دا لاندې ډولونه پیژنو:

لنډه کیسه، ناول، ډرامه، طنز، تکل، ادبي ټوټه، سفرنامه (یونلیک) ادبي راپورتاژ، ادبي لیکونه، ادبي انځور، فلمي سناریو او نور، چې دا ټول په پښتو ادب کې دود دي او د بې شمیره چاپې آثارو بیلګې یې شته، چې دلته د هغو نومونه اخیستل او پر دغو ادبي ډولونو بحث کول موضوع اوږد وي، نو ځکه ترې ډډه کوو.



د متن لنډیز:

نثر هغه وینا یا لیکنه ده چې د وزن او قافیې له قیدوبند څخه آزاده وي. دپښتو ادب په پرمختیایي بهیر کې تر ننه پورې د بنې او محتوا له مخې د نثر بیلابیل ډولونه رواج وو او دي. په پخوانیو نثرونو کې د شکل او بڼې له مخې متکلف نثرونه، مسجع یا قافیه وال نثرونه او ساده یا روان نثرونه موجودوو، د محتوا له مخې حماسي نثري آثار، غنایي نثري آثار، تاریخي نثري آثار او دیني نثري آثار. او په اوس وخت کې د بڼې او شکل له مخې پښتو نثرونه په عامه توګه په ساده نثرونو او ادبي ـ هنري نثرونو وېشل کېږي، چې په هره برخه کې ډېر ډولونه شته. په ساده نثرونو کې ټولې علمي، سیاسي، ژورنالیستکي، څېړنیزې تحلیلي او تشریحي لیکنې یا آثار راځي. او په هنري ادبي نثرونو کې لنډه کیسه، ناول، ډرامه، ادبي ټوټه، تکل، سفرنامه، ادبي راپورتاژ او نور شامل دي.

## فعالیتونه

۱ـ د ښوونکي له متن لوستنې او لازمو څرګندونو وروسته دې زده کوونکي متن په چوپه خوله په ډېر غور او دقت ولولي.

۲ـ زده کوونکي دې په وار سره د متن یو یو پراګراف ولولي. د اړتیا په وخت کې دې ښوونکی د سمون لپاره مرسته وکړي.

۳ـ زده کوونکي دې په نوبت سره د ټولګي په وړاندې د متن مفهوم او لنډيز ووايي.

۴ـ زده کوونکي دې وګومارل شي، چې متن په غور سره ولولي او په هغه کې دې خاص نومونه په نښه او لست کړي. بیا دې هغه په نښه کړي نومونه د ټولګي په وړاندې ولولي. ښوونکی دې د اړتیا په وخت کې مرسته وکړي.

**خاص نوم**: چې يو ځانګړی ځيز، وګړي، ځای يا کوم شی نوموي، لکه: کابل، ننګرهار، احمد شاه بابا، جميله، توريالی او نور.

۵ـ زده کوونکي دې په وارسره د ټولګي مخي ته ورو بلل شي چې په متن کې د راغليو آثارو له ډلې څخه د دوو کتابونو او د هغو د ليکوالو نومونه واخلي.

۶ـ په دې لاندې او داسې نورو پوښتنو په کولو دې د زده کوونکو په لوست د پوهيدنې دکچې ارزونه وشي:

- څوک د نثر لغوي او اصطلاحي معنا او مفهوم بيانولی شي؟
- څوک ساده يا مرسل نثر تعريفولی شي؟
- څوک په پښتو کې د متکلف نثرليکلي اثر نوم ښودلی شي؟
- په پښتو کې د مسجع نثرو دوو ليکليو کتابونو نومونه واخلئ؟
- ساده ولسي نثرونه څه ډول نثرونه دي؟
- څوک د اوسني ادبي نثرونو ډولونه ښودلی شي؟




زده کوونکي دې پخپله خوښه د مسجع، متکلف، ساده او ادبي نثر لږ تر لږه پنځه کرښې د بيلګې په توګه وليکي او دبلې ورځې پښتو لوست ساعت کې دې هغه د ټولګيوالو په وړاندې ولولي.

نيکي هرشي مغلوبوي، خو پخپله نه مغلوبيږي.

# ګابریل کولیت سیدوني د کیسه ییز ادب پیاوړې لیکواله



ـ تاسې پښتو او دري ژبوله لیکوالو او شاعرانو سربیره د نورې نړۍ د کوم لیکوال یا شاعر له نامه او آثارو سره آشنا یاست؟

ـ د کوم بهرني لیکوال کوم ادبي اثر مو لوستی دی؟

وایي چې ادب د ټولنیز ژوند هنداره ده او په هغه کې د یوې ژبې د ویونکو یا ولس د اجتماعي ژوند څېره په ډېر ښه ډول انځورېږي. ددې لپاره چې موږ په بشري ټولنه کې ژوندکوو او دې ته اړ یو چې نه یوازې د خپل هیواد، بلکې د نړۍ د نورو هېوادونو د خلکو او ولسونو د ژوند، فرهنګ او کلتور په باب هم معلومات تر لاسه کړو، نو لازمه ده چې د نورو هېوادنو ادبیات په مستقیمه توګه د هغوی د ژبو د زده کولو او یا له هغو ژبوڅخه زموږ ژبو ته د ژباړلو شویو آثارو له لارې مطالعه کړو او له نومیالیو ادبي او فرهنګي څېرو سره یې آشنایي تر لاسه کړو. په همدې موخه په دې لوست کې د فرانسې د داستاني ادبیاتو یوه مشهوره لیکواله ګابریل کولیت در پېژنو.

سیدوني ګابریل کولیت نومیالۍ کیسه لیکونکې په ۱۸۷۳م. کال د فرانسې په ختیځ د سن سور آن پوازي په سیمه کې زېږېدلې ده. پلار یې د هغو سردارانو له ډلې څخه و چې ناپلیون له دندې ګوښه کړی او په بزګرۍ بوخت و. همدا لامل و چې مېرمن کولیت له هر څه زیاته د طبیعت له زړه وړونکو منظرو سره آشنا شوه.

نوموړې خپله لومړنۍ زده کړه د خپلې سیمې په ښوونځي کې تر سره کړې او بیا د دندې تر لاسه کولو پسې پاریس ښار ته لاړه. هلته یې د کوېته ویلار په نوم له یوه ژورنالست سره، چې په ورځپاڼه لیکنه کې په ((ویلی)) مشهور و، واده وکړ او د هغه په زیات ټینګار یې د ((کلودین)) تر سر لیک لاندې د یو لړ کیسو په لیکلو پیل وکړ، چې هغه یې په څلورو ټوکونو کې د ((کلودین په ښوونځي کې))، ((کلودین په پاریس کې))، ((کولودین په کور کې)) او ((کلودین ځي)) تر سرلیکونو لاندې د ۱۹۰۰م. او ۱۹۰۳م. کلونو تر منځ دده د ژوند ملګرې ((ویلی)) په نوم خپاره شول.

د مېرمن کولیت دغه ساده، خو ډېرې په زړه پورې کیسې د خلکو له ډېر تاوده هر کلي سره مخامخ شوې. دده په وړاندې د ویلي ځینې خیانتونه او ځان غوښتنې د دې لامل شوې، چې په ۱۹۰۶م. کال له هغه څخه د خپل ژوند لاره بېله کړي. په دې ترتیب کله چې د دوی تر مینځ د واده اړیکې و شلېدلې، دې ته اړه شوه چې د ژوند تیرولو لپاره څه کار کسب وکړي، نو یې یو لړ هنري فعالیتونه پیل کړل او د ننداړو تر سره کوونکو له یوې ډلې سره ملګرې شوه. د ننداړو تر سره کولو لپاره یې ډېرو لرې او نږدې ښارونو ته سفرونه وکړل او په دې لړ کې یې د خپلو راتلونکو ادبي فعالیتونو لپاره ډېر مواد تر لاسه کړل. هغې په ۱۹۱۰م. کال د ((ګرځندویه ښځه)) په نوم داستاني اثر خپور کړ. په دې پسې یې درې کاله وروسته په ۱۹۱۳م. ((ننداړتون د صحنې تر شا)) ناول خپور کړ. له دې نه مخکې وختونو کې یې د ((لوماتن)) ورځپاڼې له مدیر سره واده کړی او د دغه ورځپاڼې ادبي کلیشې لیکل او ترتیبول هم په غاړه اخیستي وو، چې ډېره موده یې دغو لیکنو ته دوام ورکړ. په ۱۹۱۲م. کال له خپل مېړه سره په طلاق دا لړۍ پای ته ورسېده.

هغې چې په ۱۹۲۰م. کال خپل یو ډېر ارزښتمن اثر د ((عزیز)) په نوم خپور کړی و،



د هغې پاتې برخه یې د ((د عزیز دکار پای)) تر سر لیک لاندې په ۱۹۲۶ م کال چاپ او خپره کړه.

مېرمن کولیت څو کاله وروسته (۱۹۳۳م.) په خپل لیکلي رومان ((سیدو)) کې له خپلې مور سره د زیاتې مینې څرګندونه وکړه. په ۱۹۳۶م. کال یې د بلژیک د سلطنتي اکاډمي غړیتوب تر لاسه کړ، او د ((ژی ژی)) ناول له خپرولو وروسته په همدې ۱۹۴۴م. کال دکنګور د اکاډمي غړې او بیا د دې اکاډمۍ د ریاست چارې هم وروسپارل شوې. په ۱۹۴۸ م کال یې د خپلو لیکلو آثارو بشپړه ټولګه چاپ او خپره کړه، د فلج په ناروغۍ اخته او له ادبي فعالیتونو پوره پاتې شوه.

نوموړې به ۱۹۵۳م. کال د لژیون دونور نښان په تر لاسه کولو وویاړل شوه او یو کال وروسته (۱۹۵۴م.) یې هم هلته په پاریس کې له نړۍ نه سترګې پټې کړې.

مېرمن کولیت سربېره پر هغې پیاوړي ځواک، پوهې او مهارت، چې په خپلو آثارو کې یې د هیلو او غوښتنو په منعکسولو کې درلود، دا یې هم کولای شول چې لوستونکي د خپلو آثارو د طبیعي صحنو منځ ته وروړلي او له طبیعت سره د هغوی ډېرې نږدې اړیکې ټینګې کړي. دا ځواک یې هم درلود چې په لوستونکي کې د ماشومتوب حالت او جذبه را ولاړه کړي. هغه هم په داسې لار او روش، چې د روانۍ او ساده ګۍ له پلوه او د صحنو په انځورولو کې یې د خپلې زمانې په رومان لیکونکو کې د هغې ساری نه لیدل کېږي.

د یو مشهور کره کتونکي په وینا: ((د نوبل دجایزې ډېر داسې وړونکي شته چې نه شي کولای داسې څه وړاندې کړي چې د دغې ښځې له بدیعي نبوغ سره برابري وکړي.))

مېرمن کولیت له دې پورته یادو کړو آثارو سربیره نور چاپي داستاني آثار هم لري، چې دلته یې نومونه اخلو: دحیواناتو خبرې اترې (۱۹۰۴م.)، د تاک ښنې (۱۹۰۸م.)، نارسیدلي غنم (۱۹۲۳م.)، د ورځې را دبره کېدل (۱۹۲۸م.)، پیشو (۱۹۲۳م.)، ژولي دوکارنیلان (۱۹۴۱م.)، د میرابو څواني(۱۹۴۱م.)، ماښامنی ستوری (۱۹۴۷م.)، یو وانښه پلورونکی (۱۹۴۹م.)، آبي فانوس (۱۹۴۹م.)، د ښځو زړه (۱۹۵۲م.)، د مېرمن لپاره شعر (۱۹۵۳م.).

د متن لنډیز:

ګاربریل کولیت، مشهوره فرانسوی داستان لیکونکې په ۱۸۷۲م. کال په فرانسه کې زېږېدلې وه. پلار یې د هغو سردارانو له ډلې څخه و چې ناپلیون واکمنی ته د رسیدو په مهال له دندې کوښه کړ او په بزګری بوخت شو. کولیت لومړنی زده کړه د خپلې سیمې په یو ښوونځي کې وکړه او بیا د دندې تر لاسه کولو پسې پاریس ښار ته لاړه، هلته یې د یوې ورځپاڼې له ژورنالست سره واده وکړ، خپل څلور داستاني آثار یې د هغه په نوم خپاره کړل، وروسته د خپل ژوند ملګري دځان غوښتنې له امله له هغه سره د ژوند لاره بیله کړه. په آزادو ننداریزو هنري فعالیتونو یې پیل وکړ. ډېرو ښارونو ته یې سفرونه وکړل او د داستاني آثارو د پنځونې او تخلیق لپاره یې ډېر مواد تر لاسه کړل. بیا یې د لوماتن په ورځپاڼه کې د لیکوالۍ په توګه دنده تر لاسه کړه او د ورځپاڼې له مسؤول مدیر سره یې واده وکړ. څو کاله وروسته یې له ده سره هم د واده اړیکې وشلولې او په خپلو فرهنګي فعالیتونو بوخته شوه. د بلژیک د سلطنتي اکاډمی غړې شوه، څه موده وروسته دګنګور د اکاډمی غړې او بیا یې د ریاست چارې هم وروسپارل شوې. نومورې د داستاني ادبیاتو پیاوړې لیکواله وه. په لس ګونو آثار یې لیکلي او چاپ شوي دي، په زیاترو کې یې د ښځو غوښتنې عواطف، هیلې او ارمانونه منعکس کړي، څکه یې نو د یوې پیاوړې لیکوالۍ په توګه لوړ نوم او شهرت تر لاسه کړی دی. دغه نومیالۍ لیکواله په ۱۹۵۴م. کال مړه شوې ده.

## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په چوپه خوله په غور او دقت سره ولولي. بیا دې په نوبت سره یویو د ټولګي په وړاندې د متن د عبارت یوه برخه ولولي. ښوونکی دې د اړتیا په

مهال کې له هغوی سره د سمون لپاره لازمه مرسته وکړي.

۲ـ زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته په نوبت سره را وبلل شي، چې په متن کې د معرفي شوې لیکوالې په اړه نورو ټولګیوالو ته خپل معلومات وړاندې کړي.

۳ـ زده کوونکي دې وګومارل شي، چې متن په ډېر غور او دقت سره ولولي او په متن کې راغلي فعلونه دې په نښه او لست کړي. بیا دې هر یو خپل لست کړي فعلونه نورو ټولګیوالو ته ولولي.

۴ـ ښوونکی دې د زده کوونکو د په نښه کړو فعلونو بشپړ تو حیدي لست د تختې پر مخ و لیکي. هغه دې د زمانې او نوعیت په لحاظ په بیلا بیلو کتګوریو و وېشي او زده کوونکو ته دې دهغو په هکله لازم معلومات او توضیحات ورکړي.

۵ـ زده کوونکي دې هغه لست کړي فعلونه په خپلو کتابچو کې و لیکي.

۶ـ ښوونکی دې دوه دوه زده کوونکي پاڅوي، یو دې له لست کړیو فعلونو څخه یو فعل وایي او بل دې هغه د زمانې په لحاظ په یو مناسبه جمله کې و کاروي. دا لړۍ دې د ټولګي پر ټولو زده کوونکو په عمل کې پلې کړای شي.

**فعل**: هغې کلمې ته وایي چې په یوه زمانه یا ټاکلي وخت د یو کار یا یوې پیښې په کیدو، یا د یوه حالت په را څرګندیدو دلالت کوي. یا فعل د وینا هغه مهمه برخه ده چې له هغې پرته جمله نیمګړې بلل کېږي، فعل دمعنا له مخې په لازمي او متعدي او د زمانې له مخې په تیر مهال د (ماضي) اوسمهال (حال) او راتلونکی(مستقبل) باندې وېشل کېږي.

۷_ په دې لاندې پوښتنو دې د لوست د زده کړې ارزونه وشي:

- موږ ولې د نورې نړۍ د خلکو ادبيات لولو او له مشهورو ادبي څېرو سره يې ځان آشنا کوو؟
- مېرمن کوليت څوک وه؟
- د مېرمن کوليت د پنځو مشهورو آثارو نومونه واخلئ.
- د مېرمن کوليت په آثارو کې کومو موضوعاتو ته ډېره پاملرنه شوې او ولې؟
- مېرمن کوليت کومې کومې دندې تر سره کړې؟




زده کوونکي دې د کورنۍ دندې په توګه د نړۍ د کوم مشهور ليکوال يا شاعر لنډ ژوند ليک وليکي او يا دې د هغوی کوم اثر په لنډه توګه معرفي او خپل را ټول کړي معلومات دې د پښتو لوست په راتلونکي درسي ساعت کې خپلو نورو ټولګيوالو ته ولولي.





# پښتو ناول




ـ تاسې ناول پېژنئ چې څه ته وايي؟

ـ تر اوسه مو د ناول په نوم کوم اثر لوستی یا لیدلی دی؟

د ناول کلمې لغوي معنا نوی، تازه او عجیبه څیز دی، په اصطلاح هغې کیسې ته ویل کیږي، چې پکې د انساني ژوند بېلا بېل اړخونه په هنري ـ ادبي ژبه وړاندې شوي وي. که د هغې پېښې رښتینې هم نه وي، لیکوال هغه د تخیل په مرسته داسې تخلیق کړي وي چې له انساني ژوند سره اړخ لګوي او د رښتیني ګومان پرې کیږي. ناول له انګریزي ادب نه اردو ژبې او ادب ته او له هغې څخه د ژباړې په لار په پښتونخوا کې پښتو ادب ته راغلی دی او بیا پخپله پښتنو لیکوالو هم په دغه ادبي ژانر او ډول کې تجربې کړې او ډېر په زړه پورې آثار يې تخلیق کړي دي.

دلته په دې لوست کې د ناول په پېژندنه او په پښتو ژبه او ادب کې د هغه پر تاریخي بهیر بحث کوو.

د ناول لغوی معنا نوي، تازه او عجیبه شیز دی او په ادبي اصطلاح د نثري کیسه ییز (داستاني) ادب یو ډول دی چې موضوع یې انساني ژوند وي او لیکوال پکې د ژوند بیلابیل اړخونه په ډیره خوږه او ادبي ژبه وړاندې کوي. یا ناول هغه نثري کیسه ده، چې له لنډې کیسې څخه اوږده وي او په لیکني چوکاټ کې یې بیلابیلې برخې، لکه دکیسې طرحه یا پلاټ، اصلي او فرعي لوبغاړي (کردارونه) منظر کښنې، مکالمې او نور شاملې وي. لنډې کیسې سره یې ډیر لوی توپیر دادی چې پېښې او مسایل پکې په تفصیل سره بیانېږي او د لوبغاړو شمیر یې هم زیات وي.

د ناول لیکنې پیلامه په لویدیځ کې شوې، هلته د مخه اوږدې روماني او خیالي کیسې دود وې، چې دهغو زیاتره پیښې به داسې وې چې په عام ژوند کې به هغه نه شوې پیښیدلې. په دغو اوږدو کیسو او داستانونو د پیریانو ښاپیریانو، دیوانو او نورو غیبي موجوداتو کردارونه وو، جادو او کوډو اغیزې به پکې ډیرې وې او له رښتیني انساني ژوند سره یې اړیکه نه وه، په همدغه مهال د اتلسمې پیړۍ په وروستیو کلونو کې ناول د یو نوي ادبي ډول (ژانر) په توګه په اروپا کې را منځته شو. په لومړي ځل لیکوالو داسې کیسې ولیکلې چې د رښتیني انساني ژوند سم انځور پکې کښل شوی و او هیڅ یوه پیښه پکې داسې نه وه چې د هغې کیدل یا پیښیدل دې په عام انساني ژوندکې نا شوني وي. دغه ډول کیسو ته د ناول نوم ورکړل شو او په ادب کې یې ډیر مقبولیت تر لاسه کړ.

په انګریزي ادب کې لومړنی ناول سمویل چرډسن سمویل د ((پامیلا)) په نوم په ۱۷۴۱ میلادي کال لیکلی او په ۱۷۴۲ میلادی کال خپور شوی دی. وروسته د نثري ادب دغه ډول لیکنه د نړۍ د نورو ژبو په ادبیاتو کې هم دود شوې. په دې لړ کې ناول له انګریزي ادب څخه په اغیز د نولسمې پیړۍ په وروستیو کې اردو ژبې او ادب ته راغلی او له هغه ځایه د ژباړې له لارې په



پښتونخوا کې پښتو ادب ته راغی.

د ډپټي نذیر احمد لیکلي اردو ناولونه ((مرآة العروس)) او ((توبة النصوح)) پښتو ته را وژباړل شول. د مرآة العروس ناول په پښتونخوا کې میا حسیب گل کاکا خیل په ۱۲۹۳ هجري قمري (۱۸۷۶م.) کال د ((نقش نگین)) په نوم وژباړه، چې وروسته بیا په ۱۹۵۷م. کال په پېښور کې چاپ شو ((توبة النصوح)) میا محمد یوسف کاکا خیل په ۱۳۲۳ (۱۹۰۵ م)کال ژباړلی او په همدغه کال په پېښور کې چاپ شوی دی.

وروسته بیا پښتانه لیکوال د ناول لیکلو له هنر سره آشنا شوي او لومړنی لیکوال چې پښتو ناول یې لیکلی، سید راحت زاخیلی دی. د هغه لیکلی ناول د ((ناول د ماه رخې)) په نوم په ۱۹۱۰ م کال لومړی په پېښور کې او بیا د دویم ځل لپاره په ۱۳۶۳ لمریز د کابل پوهنتون د ادبیاتو پوهنځي چاپ کړی دی.

په پښتونخوا کې تر ۱۹۵۰ م کال پورې د بل چاپ شوي ناول څرک نه لگېږي. په همدغه کال د صاحبزاده محمد ادریس ((پېغله)) په نوم ناول چاپ شو، وروسته بیا په ۱۹۵۷ م کال د حمزه شینواري لیکلی ناول ((نوې چپې)) او په همدغه وختونو کې د رشید علي دهقان ((د سرو تعویز)) په نوم ناول په پېښور کی چاپ او خپور شو. وروسته بیا تر ننه پورې په پښتونخوا کې د ناول لیکنې هنر ډېره وده او پر مختیا وموندله، لیکوالو پکې ښې تجربې وکړې او د هنر له مخې پوره او کره ناولونه ولیکل شول. د بېلگې په توگه د سید رسول رسا پنځه لیکلي ناولونه د (مفرور، شمې، خودکشي، مامونی او میخانه) او د ډاکټر شیر زمان غمژن طایزي د (گل خان، امانت، رحمان کورونه، غونډی، واده و نه شو) په نومونو لیکلي او چاپ شوي ناولونه یادولی شو.

په افغانستان کې د پښتو ناول لیکنې پیلامه په ۱۳۱۷ لمریز کال د برهان الدین کشککي په لیکلي او چاپ شوي ناول ((پټه مینه)) سره شوې ده. یو کال وروسته (۱۳۱۸ لمریز) د محمد رفیق قانع ((دوه سره مین ورونه)) ناول چاپ





شو او په را وروسته کلونو کې د قتیل خوږیانې دوه یاران، د غلام غوث خیبري د ((اور لمبې)) او ابدالی توره تاریخي ناولونه، د کبرا مظهري سپوږمۍ، د محمد عیان عیان چپه کښې، د محمد ابراهیم عطایي تاریخي ناول د آسیا په زړه کې توپان، د بشیر دودیال ((د مینې ډالۍ)) لیکل شوي او په دې وروستیو دوولسیزو کې په لس گونو پښتو لیکل شوي او ژباړل شوي ناولونه چاپ او خپاره شوي، خو لیکل شوي ناولونه یې زیاتره د لیکوالی له مخې فني او تخنیکي کمزوري لري او هنري ادبي معیار یې ټیټ دي، چې د لیکوالو ډیرې لیکنې تجربې او هلوځلو ته اړتیا لري، خو له دې سره سره داسې پیاوړي ناول لیکونکی لرو، چې لیکلي ناولونه یې کره او په ادبي تول پوره دي.

د متن لنډیز:

د ناول لغوي معنا نوی، تازه او عجیبه څیز او په ادبي اصطلاح هغه تخلیقي کیسې ته وایې چې د ژوند بیلابیل اړخونه را نغاړي. ناول لیکنه لومړی په لویدیځ کې پیل شوې او د اوږدو اوږدو خیالي او روماني یا له واقعیته لرې کیسو ځای یې نیولی دی. ناول له انگریزي ژبې څخه اردو ته او بیا ژباړې له لارې پښتو ادب ته راغلی دی. لومړني ژباړل شویو ناولونه د ډپټي نذیر احمد مرآة العروس او نوبة النصوح دی، چې د میا حسیب گل کاکا خیل او میا محمد یوسف کاکاخیل له خوا د ((نقش نگین)) او ((توبة النصوح)) په نوم پښتو ته ژباړل شوي او د پښتونخوا په پیښور کې چاپ شوي دي، وروسته بیا پښتنو لیکوالو هم د ناول لیکنې تجربې پیل کړي او لومړنی لیکوال چې پښتو ناول یې لیکلی سید راخت زاخیلي دی، چې د ناول د ماه روخې په نوم یې په ۱۹۱۰ کال چاپ او خپور کړی دی، وروسته بیا په افغانستان او پښتونخوا کې ډیرو پښتنو لیکوالو په ناول لیکنه کې پخه او کره تجربه کړې او ډېر ناولونه لیکل شوي یا ژباړل شوی او چاپ شوي دي.

## فعالیتونه

۱ــ ښوونکی دې یو یو پراګراف پر زده کوونکو ولولي او د اړتیا په وخت کې دې په سمون او اصلاح کې مرسته وکړي.

۲ــ زده کوونکي دې په دوو ډلو وېشل شي، چې متن په چوپه خوله ولولي او یوه ډله دې په متن کې راغلي د اشخاصو او ځایونو نومونه او بله ډله دې د کتابونو نومونه لست کړي. دهرې ډلې استازی دې لست کړي نومونه ولولي. ښوونکی دې هغه لستونه توحید او بشپړ کړي او پر تخته دې یې ولیکي.

۳ــ ښوونکی دې پر تخته دځینو لیکل شویوکتابونو او اشخاصو په هکله زده کوونکو ته لازمې څرګندونې وکړي.

۴ــ زده کوونکي دی په ترتیب سره د ټولګي مخې ته ور و بلل شي، چې د لوست عمومي مفهوم او پر هغه څه چې پوهېدلي هغه په خپلو الفاظو نور ټولګیوالو ته بیان کړي.

۵ــ په دې لاندې پوښتنو دې د لوست ارزونه وشي:

- څوک ناول را پېژندلی شي؟
- ناول لومړی ځل کله او د چا له خوا چیرې ولیکل شو؟
- له لویدیځ ادب څخه ناول څه ډول ښتو ادب ته راغلی دی؟
- پښتو ژبې ته لومړني ژباړل شوي ناولونه څه نومیږي او چا را ژباړلي دي؟
- په پښتو ژبه لومړنی ناول چا لیکلی او څه نومیږي؟
- د پنځو مشهورو پښتو ناولونو نومونه واخلئ؟
- د پنځو مشهورو ناول لیکونکو نومونه واخلئ؟



زده کوونکی دی کوم پښتو ناول پیدا، هغه دې ولولي د کیسې لنډیز دې پخپلو

الفاظو و لیکي، په راتلونکي پښتو ساعت کې دې هغه نورو ټولګیوالو ته ولولي.

زده کوونکي دې لاندې شعر ولولي او خوند دې ترې زاخلي:

د شاعر مسلک

صحیح لاره به ښایم که وم وم که نه وم نه وم

رښتیا رښتیا به وایم که وم وم که نه وم نه وم

د حق د پیروۍ نه مې بل څه په زړه کې نشته

چې څه یمه همدا یم که وم وم که نه وم نه وم

ازاد یم زړېدلې بندګي کولی نشم

بنده د خپل مولا یم که وم وم که نه وم نه وم

په بډو خوشامندو مې ځان خوښ نه دی چې غټ شم

که غټ یم خو همدا یم که وم وم که نه وم نه وم

چې څوک غواړي څه سپکه مې د قام د څه جهته

دښمن د هغه چا یم که وم وم که نه وم نه وم

خدمت د خپلې ژبې، قام، وطن زما مسلک دی

په دې مینه به پایم که وم وم که نه وم نه وم

کرم ښکلي تخمونه چې ګلزار شي پښتنو ته

په دغه تمنا یم که وم وم که نه وم نه وم

په ماته کښتۍ ناست یم طوفانونه مې په مخ کې

په دې لاره یې بیایم که وم وم که نه وم نه وم

د ناز په خوب ویدې غونچې ورو ورو راویښومه

خادم باد سبایم که وم وم که نه وم نه وم

((قیام الدین خادم))

# قافیه




ـ تاسې قافیه پېژنئ، دمخه مو د هغې نوم اورېدلی؟

ـ په شعر کې د قافیې په ارزښت او اهمیت پوهېږئ؟

ـ څوک کولای شي د دې لاندې کلمو هم قافیه کلمې ولیکي:

(۱) غم = (۲) ژړا = (۳) سر = (۴) گل = (۵) باغ =

قافیه عربي کلمه ده، لغوي معنا یې څټ یا شا ده. په شعر او شاعرۍ په ځانگړې توگه په کلاسیکې شاعرۍ کې ډېر ارزښت او اهمیت لري. د دې لپاره چې زده کوونکي یا د شعر لوستونکي د شعر موزونه او هماهنگه برخه ښه وپېژني، د قافیې په علم پوهېدنه ضروري ده، په دې لوست کې قافیه درپېژنو، په دورونو، حرکتونو او ډولونو یې بحث کوو.

قافیه عربي کلمه ده، لغوي معنا یې څټ یا شا ده او په ادبي اصطلاح کې هغه پوهنه ده چې د شعر د بیتونو د دورونو له ورستیو همغږیو او هماهنګیو څخه بحث کوي.

قافیه پخوا په شعر او ادب کې له ډیرو مهمو او اساسي برخو څخه ګڼل کیده، خو اوس چې نوي آزاد او بې قافیې شعرونه دود شوي، هغه پخوانی اهمیت نه دی ورپاتې، اوس ادبپوهان په شعر کې وزن او آهنګ ډیر مهم ګڼي، خو بیا هم قافیه په شاعرۍ کې، په ځانګړې توګه په لرغوني او کلاسیک شعر کې په ډیرې پاملرنې سره رعایت شوې، نو ځکه پرې د زده کوونکو پوهیدنه لازمي او ضروري ده.

دلته لومړی د قافیې کلمې، بیا توري، حرکتونه او ډولونه په مثالونو کې در پیژنو:

## د قافیې کلمې:

هغه کلمې دي چې د دورونو په پای کې په لازمه همغږۍ مراعات شوې وي.

لکه په دې لاندې بیت کې:

ښـکـلـیـه سـتـا د یــو ښـکـلـي نـظـر پــه سـر
ځـــای مـــې در لـــه در کـــړ د ځـیــګـر پــه سـر

په دې بیت کې د (نظر، ځیګر) دقافیې کلمې دي، چې لازمه همغږي لري.

## د قافیې توري:

د قافیې د کلمو له هغو تورو څخه عبارت دی چې لازمه هماهنګي یې بولي. دا توري (۹) دي:

(۱) روي (۲) ردف (۳) قید (۴) د تاسیس الف (۵) د خیل یا متغایر توري (۶) وصل (۷) خروج (۸) مزید (۹) نایر . یو څو ضروري یې تشریح کوو:



(۱) روی: په لغت کې رسۍ ته او د ادبي فنونو په اصطلاح د قافيې هغه توری دی، چې پرته له هغه څخه قافيه نه جوړېږي، بېلګه يې داده:

په دريـــاب څـرنـګـه تـر شـي کـام زمـا
چـې نـسـکـور لـکـه حـبـاب دی جـام زمـا
(شيدا)

په پورته بيت کې په (کام) او د جام کلمو کې د (ا ـ م) توري روي ده او (زما) کلمه په دواړو نيم بيتو کې رديف بلل کيږي.

(۲) ردف: په لغت کې يو په بل پسې سپور او دوه پشته ته وايي او د ادبي فنونو په اصطلاح که د قافيو په کلمو کې لومړی هماهنګ توری خپلواک (الف، و، ی) توری له روی څخه د مخه راغلي وي (ردف) بلل کيږي. لکه په دې لاندې بيت کې:

يـار د يـار د جـدايـي پـر وخـت ګـران شي
پـس لـه مـرګـه د سـړي قـدر عـيـان شي
(حميد)

په پورته بيت کې (شي، شي) کلمې رديف دي او (ګران ـ عيان) د قافيې کلمې دي (ان ـ ان) يې هماهنګه برخه ده. (الف) چې خپلواک توری او هماهنګي پرې شروع شوې، نو ((ردف)) بلل کيږي.

(۳) قيد: که چيرې د قافيې په کلمه کې هماهنګي په دوه ښنګ په ښنګ بې حرکته يا بيواکه (ساکن) تورو کې راغلې وي، لومړی بې حرکته يا ساکن غږ ته قيد وايي، لکه په دې لاندې بيت کې:

زه دې د اداء لـه رنـګـه هـسـت يـمـه
ځـم لـکـه نـګـهـت پـه لاره مـسـت يـمـه

په بيت کې (يمه ـ يمه) رديف او ( هست ـ مست) د قافيې کلمې دي. (س)، چې

لومړی هماهنګ یا همغږی ساکن توری دی، ((قید)) بلل کیږي.

(۴) د تاسیس الف: که چیرې د قافیې په کلمو کې هماهنګي په خپلواک(الف) توري پیل شوې وي او د دغه الف او روي نه مخکې د خیل یا متغایر توری راغلی وي، نو دغه الف ته د تاسیس الف وایي.

بېلګه یې داده:

خـــر د ســــرو زرو د زیــــن نـــه دی لایــق
ښـــه ځـــېـــړی ورلـــــــره بـــویـــه مـــوافـــق
(خوشحال)

په دې بیت کې د لایق او موافق د قافیې کلمې دي. په هماهنګه برخه، چې (الف) خپلوک غږ دی او وروسته ترې د خیل توری راغلې، د تاسیس الف یې بولو.

(۵) دخیل یا متغایر توری: هغه مخالف توري چې په مؤسسه قافیه کې د تاسیس الف او روي تر مینځ راغلي وي د خیل یا متغایر توري بلل کېږي، بېلګه یې داده:

نــازیـــنـــه کـــه د حـــســـن ســـخـــاوت کـا
لـــه اولـــــه دې پـــه مـــا دا عـــنـــایـــت کـا

دلته (سخاوت او عنایت) د قافیې کلمې او (کا ـ کا) یې ردیف دی (اوت او ایت) یې هماهنګه برخه ده (و ـ ی) چې د تاسیس الف او روی تر مینځ موقعیت لري، دخیل یا متغایر توري دي.

## د قافیې حرکتونه:

د قافیې کلمه شپږ حرکتونه لري، چې په بېلابېلو ځایونو کې راتلای شي. د قافیې حرکتونه دادي:

(۱) رس (۲) اشباع (۳)حذو (۴) توجیه (۵)مجری (۶)نفاذ



یو څو یې تشریح کوو:

(۱) رس: په لغت کې پیل ته او د ادبي فنونو په اصطلاح کې د تاسیس الف څخه دمخکې توري حرکت (چې زور دی) رس بلل کېږي، مثال:

لکـه ته هسې رقیب په مـا غالب دی که سپې دی ستا د در زما صاحب دی

(حمید)

په پورته بیت کې د غالب او صاحب د قافیې کلمې او (دی ـ دی) ردیف دی. هماهنگه برخه کې، چې د تاسیس له الف څخه د مخه تورو (غ، ص) حرکتونه زورونه دي (رس) بلل کېږي.

(۲) حذو: په لغت کې برابر ته وایي او په اصطلاح کې د قید او ردف له تورو څخه د مخه تورو حرکت ته حذو ویل کېږي، بېلګه:

د اشفاق طمعه به څه کړي له اخوانه نتیجــه یې ورکــیده دي له کـنعانه

(شیدا)

په دې بیت کې (اخوانه ـ کنعان) د قافیې کلمې دي. هماهنګه برخه یې (الف ـ ن ـ ه) ده. له ردف څخه د مخکې تورو (و ـ ع) حرکتونه، چې زورونه دي، حذو یې بولي.

(۳) اشباع: په لغت کې مړېنت ته وایي او په اصطلاح کې د دخیل تورو حرکت ته اشباع وایي. بېلګه:

هېڅ مې نه کړه په دا عمر کې حاصل هسې پاتې شـــوم مـردود و نا قابل

(رحمان بابا)

په دې بیت کې د قافیې کلمې (حاصل ـ ناقابل) دي. الف چې خپلواک غږ او د تاسیس الف دی (ص، ب) د تاسیس الف اوروي تر منځ راغلی، دخیل توري دي. د همدغو دوو تورو (ص ـ ب) حرکتونه، چې (زېرونه) یا کسرې دي، اشباع بلل کېږي.

(۴) توجیه: په لغت کې د یو شي د مخې کولو په معنا ده او په اصطلاح کې د قافیې په کلمو کې د روي له توري څخه د مخه توري حرکت ته توجیه وایي، مثال:

ځواني زما شوه دود له غریبه د دلبر سره ځي
بیوه د هوش مې په سلګو شوه له سحر سره ځي
(حمزه)

## د قافیې ډولونه:

قافیه په دوه ډوله ده: الف: حکمي قافیه ب: حتمي قافیه

حکمي قافیه عموماً په لنډیو کې مراعات کیږي، چې د هرې لنډۍ آخر ته باید (نه ـ مه) آهنګ راشي، لکه:

زما دلرې وطن یاره رب دې سپوږمۍ کړه چې دې وکړم دیدنونه

او حتمي قافیه هغه د نظم په دواړو نیم بیتو کې داسې کلمې راغلې وي، چې لازمه هماهنګي ولري. دا قافیه دکلمو د مراعات په لحاظ په دوه ډوله ده: ۱ـ غبرګه قافیه ۲ـمرکبه قافیه.

الف ـ غبرګه قافیه: کله کله شاعر په ځان دا لازموي جې په هر نیم بیتي کې دې د قافیې دوه کلمې راوړي او کله بیا دا پر ځان لازم ګڼي چې ټول نیم بیتی دې مصرع وي. دغه دواړو ډولونو ته د قافیې په اصطلاح کې غبرګه قافیه وایي.

ب ـ مرکبه قافیه: هغې قافیې ته وایې چې د قافیې د کلمې په هماهنګه برخه کې له روی سره (ردف، قید، تاسیس الف یا وصل، خروج، مذید او نایر) له تورو څخه یو توری راغلی وي. دا قافیه په څلور ډوله ده، یوازې نومونه یې اخلو: (۱) مؤسسه قافیه (۲) مقیده قافیه (۳) مردفه قافیه (۴) موصله قافیه.



د متن لنډيز:

قافيه عربي کلمه ده، لغوي معنا شا يا څټ او د ادبي فنونو په اصطلاح هغه پوهنه ده چې د شعر د بيتونو د وروستيو دورونو له هم غږيو او هماهنگيو څخه بحث کوي، دقافيې کلمې هغه دي چې د دورونو په پای کې په لازمه هماهنگۍ او همغږۍ مراعات شوي وي. قافيه (۹) توري لري چې هغه: روي، ردف، قيد، د تاسيس الف، دخيل يا متغاير توری، وصل، خروج، مزيد او ناير دی.

قافيه شپږ حرکتونه لري، چې هغه په بيلابيلو ځايونو کې راتلای شي. حرکتونه يې دادي: رس، اشباع، جذو، توجيه، مجریٰ، نفاذ.

قافيه په دوه ډوله ده: حکمي قافيه، حتمي قافيه

حتمي قافيه د کلمو د مراعات په لحاظ په دوه ډوله ده: غبرگه قافيه، مرکبه قافيه.




۱ـ زده کوونکي دې متن په غور او دقت سره په چوپه خوله ولولي او بيا دې په ترتيب سره زده کوونکي د متن خوخوکرښې د ټولگي په وړاندې ولولي.

۲ـ ښوونکی دې د هرې برخې بېلگه پر تخته وليکي او زده کوونکي دې په نوبت سره تختې ته ورشي او په هغه کې د قافيې کلمې، رديفونه، د قافيې توري او حرکتونه په عملي توگه وروښيي.

۳ـ ښوونکی دې له متن څخه بهر ځينې بيتونه پر تخته وليکي او زده کوونکي دې ور وبولي چې په هغه کې د قافيې کلمې، توري، حرکتونه وښيي.

ښوونکی دې د اړتيا په وخت کې مرسته او سمون وکړي.

۴ـ ښوونکی دې یو بیت زده کوونکو ته و وايي، چې هغوی يې د املاء په بڼه په خپلو کتابچو کې ولیکي او په کې د قافيې توري پیدا کړي.

۵ـ په دې لاندې پوښتنو دې د لوست ارزونه وشي:

- څوک قافيه په لغوي او اصطلاحي معنا او مفهوم را پيژندلی شي؟
- څوک په شعر کې د قافيې ارزښت او اهمیت بیانولی شي؟
- څوک د قافيې توري ښودلی شي؟
- څوک ویلی شي، چې قافيه څو حرکتونه لري او هغه کوم دي؟
- قافيه په څو ډوله ده؟ نمونه يې واخلئ.




ښوونکی دې زده کوونکو ته له متن څخه بهر دا لاندې دوه بیتونه ورکړي، چې زده کوونکي يې په کور کې دقافيې کلمې، ردیفونه او هماهنگې برخې، په نښه او د پښتو لوست په راتلونکي درسي ساعت کې هغه نورو ټولګیوالو ته د تختې پر مخ تشریح کړي:

هــر ســاعــت زمــا د غــوږ پــه تــاوولــو
د رقــیــب لاســونــه ســره شــي تــر څنګلو
عبدالرحمٰن بابا

× × ×

الٰــهــي د مـحـبـت ســوز او گــداز را
پــه دې اور کــې د ستــي سـمـنـدر ســاز را
عبدالحمید مومند



# وییپانګه



((ا))

اترنګ: یو ډول نکریزي دي

اتلان: قهرمانان

ارزونه: ارزیابي، ارزښت موندنه

اړ: مجبور او مکلف

اړیستل: مجبورول

اړیکې: ارتباطات

آزموینه: امتحان

استازی: نماینده

استوګن: اوسیدونکی

اشجار: ونې

اعزاز: عزت، لوړاوی

اغېز: تاثیر

اوډنه: تدوین او تنظیم

اوسمهال: اوس زمانه

اوونیزه: جریده، هفته نامه

ایجاد: رامنځته کېدل

((ب))

بډای: غني، شتمن

بصیرت: بینایي، پوهه

بڼه: شکل

بهیر: جریان

بیره: تلوار

بېلګې: نمونې، مثالونه

بېلګه: نمونه، مثال

((پ))

پانګه: شتمني، مال

پرمختګ: ترقي، پیشرفت

پرښتې: ملایکې

پراوونه: مرحلې

پسو للی: سینګار شوی

پلازمېنه: پایتخت

پلوي: طرفدار

پلویان: طرفداران

پلې: تطبیق، عملي

پنځول: تخلیقول، نوي رامنځته کول

پیروپلور: اخیستل، خرڅول

پیلامه: شروع

((ت))

تړاو: ارتباط، اړه

تصدیعه: زحمت، تکلیف



تملق: چاپلوسي، خوشامندي

توکم: اصل، نسل- قوم

توکي: برخي، مواد

تېر مهال: تېره زمانه

((ټ))

ټاټوبی: هېواد، د اوسېدو سیمه

ټبر: قوم، ولس

ټکنده غرمه: پوره غرمه

ټکنی: ځنډنی

ټولګي: مجموعي

ټولنيز : اجتماعي

((ج))

جوت: معلوم، څرګند

((چ))

چاپېريال: محيط

چارې: کارونه

((ځ))

ځواک: قوت

ځيرک: هوښيار

ځانګړنه: ځانګړتيا، خصوصيت

ځواکمن: د زور او قوت خاوند

((ث))

څرګندونې: توضيحات

څېړنيز: تحقيقي

څېړونکي: محققين

((ح))

حجاب: پرده

حرکات: حرکتونه

((خ))

خار: اغزی

خصلت: خوی، عادت

خوندي: ساتل شوي

خيام: خيمه

((د))

داد: عدالت، انصاف

دود: رسم او رواج

دوديز: عنعنوي

((ذ))

ذوق:

((ډ))

ډاډه: مطمين

ډالۍ: سوغات، تحفه

ډګر: میدان

((ر))

ربړه: مشکل، ستونزه

روزنه او پالنه: تربیت او پرورش

((ز))

زبون: ځپل شوی، بدحال

زرغون: شین، راټوکېدل

زرینه: طلایي

((ژ))

ژغورنه: ساتنه، خوندي کول

ژغورل: ساتل

ژباړه: ترجمه

((س))

ستاینه: صفت

ستونزمن: مشکل

سحاب: وریځ

سرفرازه: سرلوړي

سکنات: ځای پرځای درېدل

سلوک: چلند، رویه

سوګند: قسم

سویل: جنوب

((ښ))

ښکېلاک: استعمار

ښېګڼې: ښه والی، غوره والی

ښکېل: نښتي

((ط))

طراوت: تازه ګي، ښیرازي

طرز: ډول

((ع))

عظمت: لوړوالی

((غ))

غورچاڼ: منتخب

غوره: ښه، عالي

غور: تاکید

((ق))

قدام: قدمونه

قشر: طبقه، پوړ

قدیم: پخوانی

((ک))

کټ مټ: عیناً

کچه: سویه، سطحه

کرونده: د کښت ځمکه، مزرعه

کلتور: د عنعنو مجموعه

کیف: اغېز ـ خوند

((گ))

گروېږنه: پوښتنه، سپړنه، سېړنه، پلټنه، تحقيق

گمرمايي: تودوخه

گواه: شاهد

گړنگ: ژور ځای، کنده

گنج: خزانه

گومارل: مؤظف کول

((ل))

لاسته راوړنه: لاس ته راوړې شي، دست آورد

لامل: سبب، عامل

لرغوني: پخوانی

لړی: سلسله

لورول: پيرزو کول

لويه وچه: براعظم

لېږدول: انتقالول

ليکدود: رسم الخط

((م))

مراحل: مرحلې، پړاوونه

مرتبه: درجه، پوړ، مقام

مرشد: پير، لارښود

مزرعه: کرونده

مسند: څوکی، مقام، رتبه

مشاور: سلاکار، مشوره ورکوونکی

مغلق: پېچلې

مکان: ځای

منځپانگه: محتوا

منظومه: په شعر يا نظم وينا

موخې: هدفونه

مهال: وخت

((ن))

ناشوني: نه کېدونکي، نامکنه

نچوړ: نتيجه

نغوته: اشاره

نامتو: مشهور، نوميالی

نغښتي: پېچلی، راتاو شوی

((و))

ورد: ذکر، په ژبه تکرارول

ورين: پراخ، پرانستي

وړ: لايق، مناسب

ولېږدېد: انتقال شو

ونډه: برخه

وياړ: افتخار

((هـ))

هڅونه: تشويق

هورې: هلته

هوساينه: ارامي، سوکالي

((ي))

يون: حرکت

يونليکونه: سفرنامې

## اخځلیکونه:


۱_ د عبدالقادر خان خټک دیوان، د عبدالحی حبیبي په سریزه او زیار، کندهار، ۱۳۱۷ هـ.ش. کال.

۲_ د یونس دیوان، د څېړندوی عبدالله بختاني، په سریزه، تعلیقاتو او زیار، د اطلاعاتو او کلتور وزارت، ۱۳۵۴هـ.ش. کال.

۳_ د پیرمحمد کاکړ دیوان، د عبدالرؤوف بېنوا په زیار، پښتو ټولنه، ۱۳۳۵هـ.ش. کال.

۴_ پښتانه شعراء لومړی ټوک، عبدالحی حبیبي، پښتو ټولنه، کابل، ۱۳۲۰هـ.ش. کال.

۵_ د پښتو ادبیاتو تاریخ، (معاصره دوره) کاندید اکاډمېسن محمد صدیق روهي، دانش خپرندویه ټولنه، پېښور، ۱۳۷۸هـ.ش. کال.

۶_ ګلدسته، عبدالقادر خان خټک، د محقق سید محی الدین هاشمي په زیار، د افغانستان د علومو اکاډمي، ۱۳۸۳هـ.ش. کال.

۷_ اوسني لیکوال، لومړی ټوک _ دویم ټوک، عبدالرؤوف بېنوا، د مطبوعاتو مستقل ریاست، ۱۳۴۰_ ۱۳۴۱هـ.ش. کال.

۸_ د افغانستان مشاهیر، لومړی ټوک، سید محی الدین هاشمي، د اریک ګرځنده کتابتونونو اداره، ۱۳۸۷هـ.ش. کال.

۹_ پښتنې مېرمنې، عبدالرؤوف بېنوا، پښتو ټولنه، کابل، ۱۳۲۳هـ.ش. کال.

۱۰_ پښتو، پښتانه او پښتونولي، څېړنوال سید محی الدین هاشمي، وحدت خپرندویه ټولنه، ننګرهار ۱۳۸۹هـ.ش. کال.

۱۱_ د عبدالرحمان بابا دیوان، د محمد عارف غروال په زیار، پښتو ټولنه، ۱۳۵۶هـ.ش. کال.

۱۲_ د پښتو پخوانی تذکرې، حبیب الله رفیع، پښتو ټولنه، کابل، ۱۳۵۰هـ.ش. کال.

۱۳_ زرينې ځانګې، حبيب الله رفيع، د افغانستان د علومو اکاډمي، ۱۳۶۰هـ.ش.
کال.
۱۴_ په خارج کې پښتو څېړونکي، څېړنوال عبدالرحيم ځدراڼ، پښتو ټولنه،
۱۳۵۴هـ.ش. کال.
۱۵_ د مشرق په آسمان کې د مغرب ستوري، پوهاند دوکتور حبيب الله تږی، د
افغانستان د کلتوري ودې ټولنه، ۱۳۸۴هـ.ش. کال.
۱۶_ پټه خزانه، محمد هوتک، د پوهنې وزارت، کابل، ۱۳۳۹هـ.ش. کال.
۱۷_ د خوشحال خان خټک کليات، د افغانستان د علومو اکاډمي، ۱۳۵۸هـ.ش.
کال.
۱۸_ د نثري ادب ډولونه، څېړنوال، سيد محی الدين هاشمي، وحدت خپرندويه
ټولنه، ۱۳۸۹هـ.ش. کال.
۱۹_ ژبپالنه، حبيب الله رفيع، د افغانستان د علومو اکاډمي، ۱۳۶۱هـ.ش. کال.
۲۰_ د مرغلرو امېل، قيام الدين خادم، د مطبوعاتو مستقل رياست، ۱۳۳۲هـ.ش.
کال.
۲۱_ ادبپوهنه، محقق سيد محی الدين هاشمي، د اريک ګرځنده کتابتونونو اداره،
پېښور، ۱۳۸۲هـ.ش. کال.
۲۲_ فرهنګ ادبيات جهان، پنځم ټوک، دکتور حسن حزايل، تهران، ۱۳۸۴هـ.ش.
۲۳_ د قافيې فن، محمد ابراهيم همکار، پېښور، ۱۳۸۷هـ.ش. کال.
۲۴_ ادبي فنون، عبدالرؤوف بېنوا، پښتو ټولنه، ۱۳۲۶هـ.ش. کال.
۲۵_ پښتو _ پښتو تشريحي قاموس، د افغانستان د علومو اکاډمي دويم چاپ
ميديوتيک اداره، ۱۳۸۳هـ.ش. کال.
۲۶_ فرهنګ نشر سخن، حسن انوري.
۲۷_ فرهنګ عميد، حسن عميد.
۲۸_ د پښتو ژبې لنډ ګرامر، محقق سيد محی الدين هاشمي، د اريک ګرځنده
کتابتونونو اداره، پېښور، ۱۳۸۳هـ.ش. کال.